تربیتي پروګرامونه چې دتلویزیون له لارې تنظیم کېږي طبعًا د ټولنې اوځوان نسل د ښه تربیې په منظور مؤثر تماميږي . په دې پروګرامونو کښې طبعًا مجرب او ماهر استاذان لاس لري، چې د ښوونې او روزنې په علمي او مېتودیکی سلاح مجهز او د پوره تجربې خاوندان وی.

البته تلویزیونی تربیتی پروګرامونه د مسلکی او مجربو ښوونکو له خوا په منطقی او سیستماتیک ډول تطبیق کېږي . پروګرام په انتخابی ډول نشر ته سپارل کېږي . کوم چې لیدونکی په نمایشی ډول حقایق د انتخاب شوی فلم په ښودلو سره په سمعي او بصري ډول ملاحظه کولای شي.

# نهم فصل پورې مربوط ترتیب کړې شوی

## چارت

دتدریس تخنیکي وسایل



# تمرین

۱/ د مدرن تخنیکی وسائلو څخه مطلب کوم وسایل دي چې په تدریس کښې دهغوئ څخه کار آخستل کېداى شي ؟

۲/ د پروجکټور په مرسته شاګردانو ته څه خدمت کولاى شو؟

۳/ سینما توګرافي د تدریس په هکله څه رول لوبولاى شي؟ اودکوم ډول وسایلو څخه شمېرل ؟

۴/ راډیو په تدریس کښې کوم ډول درسي وسیله ده ؟

۵/ تیپ ریکاردر، په درسي فعالیتونو کښې کوم سهولتونه پیدا کوی؟

۶/ تلویزیون په مدرنو تخنیکي وسائلو کښې کوم ډول وسیله ګڼل کېږی؟ اودکوم تربیتي ارزښت لرونکی دی.

۷/ د مدرنو تخنیکی وسائلو استفاده ولې د پرمختیائي هیوادونو په تعلیمي اوتربیتي مؤسساتو کښې عمومیت نه لری ؟ موضوع په دلائلو روښانه کړئ ؟

# لسم فصل

## د درسي ممدومواد و ځینې منابع او مراکز

درسی ممد مواد او لوازم د ضرورت سره سم کولای شو د مختلفو منابعو او مراکزو څخه ترلاسه کړو چې مونږ دکار د اسانتیا لپاره ځینې ئې مختصرًا څیړو :-

**الف ـ مکتب :** معمولاً مکتب یامدرسه د ښوونکو د درسي ممدو موادو د لاسته راوړلو لومړنۍ مرجع ګڼل کیږي.

مکتب یا تعلیمي موسسه دټولنې د راتلونکی نسل د علمي او فرهنګی سطحې د ودې او انکشاف لپاره شرایط اوامکانات برابروي چې دغه امکانات او وسایل دمکتب د شاګردانو د تعلیمي او تربیتي ودې په خاطر د ښونکو له خوا د درسي ممدو موادو او معاوناتو په توګه په کارلویږي.

طبعًا مکتب یاهره تعلیمي موسسه دخپل مادی اومعنوی امکاناتو په برابرولو کښې د ټولنې د فرهنګی سیاسي او اقتصادي ترکیب او ارزښتو تابع وي.

د درسی ممدو موادو او لوازمو د برابرولو په خاطر هرمکتب په خپل اداري تشکیل کښې د تحویلخانې یا کودام په نوم یوه شعبه لري، د دې شعبې لویوالی یا کوچنی والی د مکتب یا تعلیمي موسسې د لویوالي او اقتصادي توانائی سره مستقیمًا متناسب وي، مګر د ښوونکو د درسي ممدو موادو د لومړنۍ مرجع په توګه اقلًا اولیه ضروري درسی وسایل لکه کتاب، تخته، تخته پاك، تباشیر، نقشې، مجسمه کره ځنی ضروري مودلونه، ځینې ضروري طبیعي، کیمیاوي او محیطی مواد بخپله ذخیره کښې باید ولري، ترڅو ښوونکی او مدرسین د ضرورت په وخت کښې د هغوئ څخه کار واخلي.

ب: عمومي محيط او چاپيريال :- د مکتب څخه وروسته محيط او چاپيريال د ښوونکو او شاګردانو لپاره د درسي ممدو او ضروري موادو د تهيه کولو او لاسته راوړلو دوهمه منبع او مرجع ګڼل کېږي چې ښوونکي او شاګردان کولای شي په وړيا توګه د محيطي موادو څخه لکه نباتات، حيوانات، معدني مواد او نورو څخه د درسي ممدو موادو په اماده کولو کښې استفاده وکړي.

د محيط او چاپيريال څخه د درسي ممدو موادو د برابرولو چانس د ښوونکو علاقه يا ذوق او پيداګوژيکي مهارتونو پورې اړه لري چې ترکومې اندازې پورې پخپله د ساده محيطي موادو څخه کار اخلي او ترکومې اندازې پورې شاګردان په کار اچولای شي تر څو د هغوئ د استعدادونو څخه د درسي ممدو موادو په جوړولو او لاس ته راوړلو کښې استفاده وکولای شي، داځکه چې محيط نسبتًا د طبيعي موادو له درکه غني وي او د دی منبع څخه په تدريس کښې معقوله استفاده د ښوونکی ميتوديکي او پيداګوژيکي صلاحيتونو پورې اړه لري.

ج ـ کتابخاني ( Library ) :- کتاب[1] او ليکل شوی آثار د درسي ممدو موادو په رديف کښې د اوليه ضرورياتو په جمع کښې راځي، ځکه د ښوونکي او شاګردانو د کارتياکونکی سند کتاب دی، د تعليمي نصاب تدوين شوي پروګرام د کتاب په ترتيب، تنظيم او جمع بندی سره اعتبار او قانونيت پيداکوی. د کتاب په موجوديت سره ښوونکی د خپل کلنی درسي پلان، مياشتني درسي پلان او ورځني درسی پلان جوړ او په عمل کښی ئې پياده کوي، د کتاب له مخې د مدرسينو مسؤليتونه او ورځني مکلفيتونه تعيين او ثبت کېږي.

---

(۱) راه نو در تعليم و تربيت ـ حسين کاظم زاده ـ ص ( ۱۶۷ )

له دې جهته لازم وګڼل شو چې د درسي ممدو موادو د نورو منابعو په څوا کښې د کتاب او کتابخانې په هکله هم یو څه معلومات ترلاسه کړو.

د ښوونې او روزنې په مختلفو دورو کښې لکه ابتدائي دوره، متوسطه دوره، ثانوي، عالي او مسلکي دورو کښې د مسئولو مراجعو په کومک سره د تعلیمي نصاب د غوښتنې مطابق د مختلفو مضامینو لپاره مختلف درسي کتابونه د مختلفو صنفونو لپاره تهیه او توزیع کېږي، د درسي کتابونو د لاسته راوړلو اولینه مرجع د شاګردانو او ښوونکو لپاره مکتب او د مکتب تحویلخانه دی، چې د مسئولو مامورینو له خوا په عادلانه ډول باید توزیع شي.

د شاګردانو او ښوونکو د عامه استفادې او همدارنګه د عمومي معلوماتو د لوړوالي او درسي مشکلاتو د حل او فصل په منظور د مکتب او مکتب په محیط او ماحول کښې د کتابخانو موجودیت هم شرط دی.

په لویو لویو علمي مراکزو کښې په عالي سویه د کتابونو د جمع بندۍ، بند و بست کېږي چې په دې ډول کتابخانو کښې علاوه د ښوونکو، استاذانو، شاګردانو او محصلینو څخه د نورو فرهنګي مراکزو اعضاوې هم کولای شي په رسمي او یا غیر رسمي ډول د کتابخانې د کتابونو څخه استفاده وکړي.

د کتابخانې موجودیت یا په بل عبارت د کتابخانو تاسیس او سنبالښت د هیوادونو د اقتصادي شتمنۍ سره مستقیماً رابطه لري. په انکشاف یافته هیوادونو کښې زیاته بودجه د کتابخانو لپاره تخصیص ورکول کېږي.

باید ووېیل شي چې د کتابخانې د کتابونو څخه استفاده کول د خاصو شرایطو او انضباطي امورو په نظر کښې نیولو سره ممکن دی. ذکي شاګردان او پرکار استاذان او محصلین کوم چې علم معرفت او مطالعې سره زیاته علاقه لري د درسي کتابونو په څوا کښې د کتابخانې د کتابونو څخه هم په اعظمي توګه استفاده

کوي.

کتاب اوکتابخانه ځوونږ په اسلامي فرهنګ کښې د تاریخي قدامت[1] لرونکې دی، مثلاً په مصر کښې د سکندریې کتابخانه، په ایران کښې د جند شاه پور کتابخانه او نور چې د اسلام د ظهور سره سم تاسیس شوي وُو.

د :- لابراتوارونه ( Labs ) :- که څه هم په مدرسو، پوهنځیو او ټولو عمومي او مسلکي تعلیمي او تربیتي مراکزو کښې شفاهي او عملي درسونه د مضامینو په اعتبار مروج دي، مګر د نورو مضامینو په اندول په ساینس او طبیعي علومو کښې د تجربې او عملي کارونو سهم زیات وي.

د طبیعي علومو په زده کړه کښې مخصوصاً د فزیک او کیمیا په مضامینو کښې د فنونو او قواعدو او همدارنګه د کیمیاوي عناصرو تعاملات او ترکیبي خصوصیات او د عناصرو او اجسامو د فزیکي تغیراتو او خاصیتونو د ادراك په منظور مشاهداتي او تجرباتي عملیاتو ته احساس د ضرورت کېږي.

طب او دواسازۍ کښې تجزیه، تشریح، مشاهده، عمل او تجربه ستر رول لري. د عملي مشاهداتو او پرکتیکي پروګرامونو د نظم او نسق لپاره لابراتوا[ر]یوازینۍ مرجع ده چې په پوره انضباط او دسپلین سره د علمي، تعلیمي او تربیتي مراکزو په تشکیل کښې ورته ځائ ورکړ شوی وي.

په لابراتوار کښې لازم مواد کوم چې د مضمون د خصوصیاتو مطابق د درس لپاره لازم وي آماده کېږي مثلاً د کیمیا د مضمون لپاره د تجربې کیمیاوي عناصر

---

(۱) آموزش وپرورش - دوکتور ابوالفضل (عزتي) چاپ (۱۳۵۶) هـ ش - ص (۱۷۴)

(۲) راه نو در تعلیم وتربیت - نګارش حسین کاظم زاده ایرانشهر - ص (۱۶۹ - ۱۷۱)

لکه سوديم، جست، سيماب، کلسيوم، مګنيزيم او نور ضروري وسايل لکه تشت تيوب بيکرونه، بوتلونه، کيرا او نور کيمياوي ترکيبات لکه تيزابونه، القلي او نور موجود وي څو د شفاهي او نظري درسونو په خواکښې د شاګردانو د ښه تفهيم په منظور عملاً د تجربې له لارې مشاهده شي، د وسايلو او لازمو موادو په موجوديت سره څه چې ښوونکي تدريس کوي، د تجزئې، تحليل، ترکيب او يا د بعضې کيمياوي ترکيباتو په جوړولو سره د موضوع ماهيت او کيفيت په عملي ډول زده کوونکو ته تفهيم کېږي، د تجربې د غوښتنې مطابق ځني وختونه عمليات د ښوونکي له خوا سرته رسېږي او شاګردان د تجربې صحنه په دقيق ډول مشاهده کوي اما ځني وختونه د دې لپاره چې شاګردانو ته د عملي کارونو جرئت ورکړشي او شاګرد په خپله عملاً زده کړه وکړي نو تجربه د شاګردانو له خوا سرته رسېږي.

د لابراتوارونو موجوديت يا نه موجوديت، د موجوديت په صورت کښې د هغوئ وسعت او د کار حجم د ټولنې اقتصادي او فرهنګي سطحې سره مستقيماً رابطه لري، همدارنګه د ښوونځې موقف د زده کړې د مراحلو او د علوموڅانګې د لابراتوارونو په تاسيس، لويوالي او کوچينوالي کښې ستر رول لري.

د لابراتوارونو تاسيس زمونږ په تعليمي او تربيتي مراکزو کښې هم رائج دي، مګر په صنعتي او پرمختللو هيوادونو کښې د لابراتوارونو موجوديت د علمي او تحقيقي مراکزونه بېلېدونکې جزء دی.

# تمرین

۱/ په عمومي ډول درسي ممد مواد او لوازم د کومو منابعو او مراکزو څخه ترلاسه کولای شو؟

۲/ مکتب اقلاً باید کوم درسي ممد مواد ښوونکو ته اماده کړي؟

۳/ د محیط او چاپېريال څخه په کوم شکل درسی ممد مواد ترلاسه کولائ شو؟

۴/ د کتابخانو تاسیس ښوونکو او شاګردانو سره څه کومک کولای شي؟

۵/ لابراتوار څخه مطلب څه دی؟ په تدریسي چاروکښې څه خدمت کولائ شی؟

# یوولسم فصل

## د درسي ممدو موادو درجه بندي د تاثیر له نظره

څنګه چې درسي مواد او وسایل په ماهیت او نوعیت کښې سره یوشان نه دی په همدې ډول د مثمریت او مؤثریت له نظره هم یوشان نه دی. په زده کړه کښې د شاګردانو د تفهیم او د ښه پوهېدو په منظور او همدارنګه د ښوونکي د کار د اسانتیا او سهولت له جهته د درسي ممدو موادو کیفیت او د تاثیر درجه په فیصدي ډول یو د بل څخه تفاوت لري.

د دې نسبي تفاوتونو په نظر کښې نیولو سره درسی ممد مواد د نوعیت له لحاظه په پنځو مهمو ډولونو ویشلای شو چې عبارت دی له:(۱)

۱- نمونه وسایل او مواد.

۲- تصویري مواد او وسایل.

۳- مشاهدوي مواد او وسایل.

۴- تمثیلي مواد او وسایل.

۵- تجربې او عملي مواد او وسایل.

---

(۱) وسایل و مواد ممد درسی ساده و محیطی- شاه ولی (عطائی)، ریاست تعلیم و تربیه حزب اسلامی.
ص (۱۵)

(٣) - **د درس ترکیب او ساختمان** :- د درس د ترکیب او ساختمان ځنـه مطلب د درس مربوط اجزاوی دی، کوم چې باید تحلیل او تجزیه شي . د ښوونکي موفقیت په دې کښې دي چې خپل درسي موضوع په صحیح ډول درجه بندي او خصوصی اهداف په پرله پسې توګه په نظر کښې ونیسي .

معلمین باید د درس متن په کلي ډول مطالعه او په متعدد دو برخو و ویشی او هره برخه ئې په عالمانـه او ماهرانه توګه توضیح او تشریح کړی.

(٤) - **د درس حجم** :- د درسي موضوع حجم هم د تدریس په مؤثریت کښې پوره برخه لری . ښوونکي باید درسي موضوع داسې ترتیب او درجه بندي کړي چې په یو درسي ساعت (مثلاً « 40 » دقیقو ) کښې قابل د انتقال وي .

(٥) - **د درسي فعالیتونو معقول سازماندهي** : د درسي فعالیتو د سازماندهي ځنه مطلب درسي پروګرام ته نظم او سازمان درکول دی . د ښوونکی مهارت په دې کښې دی چې د درسي موضوع د غوښتنې مطابق د شاګردانو برخه آخستنه په صحیح ډول پیشبیني کړی وی . د شاګردانو ګروپي او انفرادي فعالیتونـه ، د صنف فزیکي نظم او نسق او تربیتي کړنلاره باید مخکښې له مخکښې تثبیت او د عمل په ډګر کښې پیاده شي .

لاندینی جدول په غور او دقت سره وګورئ

| م | د درسي ممدو موادو نوعیت | د درسي ممدو موادو څخه د استفادې طرز | پر زده کړه باندې د تاثیر درجه |
| --- | --- | --- | --- |
| 1 | نمونه ئي وسائیل | سمعي ممد مواد او وسائیل. بصري یا د لوستلو مواد او وسائیل (کتاب). | 1 - 20% |
| 2 | تصویري وسائیل | بې حرکته تصویرونه لکه رسمونه، عکسونه..... متحرک تصویرونه لکه سینمائي فلمونه، تلویزیون..... | 20-40% |
| 3 | مشاهدوي وسائیل | د موډلونو او اصلي شیانو مشاهده په مجرد ډول.... د تجاربو او اصلي شیانو مشاهده په مشخص ډول. | 40-60% |
| 4 | تمثیلي وسائیل | د متحرکو وسائلو په واسطه غیر مستقیم تمثیلي حرکات لکه ننداره. مستقیم تمثیلي حرکات د نقاب پوشئ له لیارې. | 60-80% |
| 5 | تجربي او عملي وسائیل | د تجاربو اجراء د شاګردانو له خوا په موډلونو باندې. د تجاربو عملي اجراء د شاګردانو له خوا پر اصل شي باندې. | 80-100% |

**نوټ:**- پورتنی نتایج او ارقام د ښوونې او روزنې د ماهرینو د تحقیقاتو په نتیجه کښې په تخمیني ډول پیشبیني شوي دي.

# د درسي ممدو موادو څخه د ښه استفادې په منظور څو ټکو ته پاملرنه

ښوونکو او شاگردانو لپاره د درسي ممدو مواد و د استعمال طریقه د ومره مهمه ده لکه چې د درسي ممدو موادو تهیه او ترتیب مهم دی ، د اځکه چې که چېرې د درسي ممدو موادو د استعمال په تخنیک پوه نه شو له یوې خوا به زمونږ قیمت بها وخت ضائع شي او له بلې خوا نه به اقتصادي ضایعات موږ زیات وي . له دې جهته لاندینیو څو ټکو ته باید توجه ولرو :-

۱/ هغه درسي ممد مواد باید صنف ته حاضر شي چې په درسي ساعت کښې قابل د استفادې وي[1].

۲/ د درسي ممدو موادو اقتصادي ارزښت باید د استعمال په وخت کښې په نظر کښې ونیول شي .

۳/ درسي ممد مواد په صنف کښې په داسې شکل تر استفادې لاندې ونیول شي چې ټول شاگردان د هغه څخه استفاده وکړای شي .

۴/ د درسي ممدو موادو څخه د استعمال نه مخکښې باید شاگردان د موضوع د اهدافو په هکله کوم چې باید تر لاسه شي - متوجه شوي وي .

۵/ درسي ممد مواد او لوازم باید د شاگردانو د سویې ، ذوق او علاقې مطابق تهیه او برابر کړای شي .

۶/ ښوونکی باید د خپلو درسي ممدو موادو مکمل لست تهیه کړي او د آینده کال لپاره د خپل ضرورت وړ کمبودات تشخیص کړي ، تر څو یې کمبود یې تکمیل

---

(۱) مواد سمعي و بصري . اسلام الدین مسلم » - ( P.M.T ) سال ( 1988 ) م-م ( 6-4)

کړای شي .

د درسي ممد و موادو تهیه او تمویل د مهمو اقتصادي پروبلمونو څخه دی، څومره چې د درسي ممد و موادو تعلیمي او اقتصادی ارزښت قابل د توجه دی په همغه اندازه باید ښوونکی او شاګردان د هغه په ساتنه کښې د لچسپي او علاقه ښکاره کړي.

ځینې درسي ممد مواد چې د سیټ په ډول شاګردانو او یا ښوونکو ته سپارل کېږي او یا هغوی ئې په خپلو شخصي پیسو تهیه کوي باید حتی الوسع د هغوی د ساتنې رعایت وکړي لکه جیومتری بکس، خط کش، کتابونه، اطلسونه، جدولونه، نقشې او نور.

کتابخانه، لابراتوار، موزیم او ملي ارشیف او نور تاریخي آبادات ځمونږ د ټولنې د فرهنګي او اجتماعي میراث څخه نمایندګي کوي، د دې ملي ثروت په ساتنه او حفاظت کښې باید پوره علاقه او فکرمندي ښکاره کړو.

په مشاهداتو او تجربوي پروګرامونو کښې کوم چې ځوانانو سره زمونږ سر او کار وي د ډېر احتیاط څخه باید کار واخستل شي ترڅو خدای ناخواسته شاګردانو ته کوم چې د آینده نسل سرنوشت دوئ پورې اړه لري د موادو او تیزابونو او یا انقلاقیه عناصرو د غلط استعمال په نتیجه کښې روحي، مالي او ځاني تاوان متوجه نه شي .

" ومن الله التوفیق

# تمــرین

۱/ آیا درسي ممد مواد په خپل مینځ کښې د مؤثریت له نظره کوم تفاوت لري؟ مثال سره يې توضیح کړی؟

۲/ د درسي ممدو موادو په ناقص استعمال کښې څه تاوان لیدل کېږي؟

۳/ صنف ته باید کوم درسي ممد مواد حاضر کړی شي؟

۴/ د مشاهداتو او تجربي عملیاتو په وخت کښې د کوم تدابیرو څخه باید کار واخستل شي؟






# تمرین

۱ - تعلیم اوتربیې څخه مطلب څه دی؟ اسلامي دانشمندانو د تعلیم اوتربیې په هکله څه نظر لری؟

۲ - درس اوتدریس یعنې څه؟ د درس او تدریس صنفی نظام څرنګه ارزیابی کوی؟ ټولګي یا صنف څخه مطلب څه دی؟

۳ - د تدریس لپاره د ښوونکي په مقدماتي اماده ګی کښې کوم فعالیتونه شامل دی؟ مثالونه یې وښیاست؟

۴ - په تدریس کښې د ښوونکي د مستقیم آماده ګی څخه مطلب څه دی؟ مقدماتي سره څه رابطه لري مقایسه یې کړئ؟ -

۵ - په تدریس کښې د مؤثرو عواملو څخه مطلب کوم عوامل دی؟ د درسي موادو تقدیم باید دکوم اصل تابع وي؟

# دوهم فصل

# میتود او میتودلوژي

په تعلیم او تربیه کښې دښوونکو لپاره یو مهم او د بحث وړ موضوع د درسي میتودونو سره اشنائي او د درسي موضوع مطابق د مناسبو میتودونو انتخاب او تاکل دي.

د میتود د اصطلاح د تعلیم او تربیې نه علاوه د ژوند په نورو چارو کښې هم د استعمال موارد لري مثلاً اقتصاد، سیاست، صنعت، زراعت ..... دفاع او داسې نور.

د مثال په ډول که چیرې وغواړو دیوې زراعتي پروژې څخه معقول او مؤثره استفاده وکړو باید د مختلفو طریقو څخه یوه معقوله او مناسبه تګ لاره انتخاب کړو.

په تعلیم او تربیه کښې میتود، دشاګردانو د تعلیمي او تربیتي ودې او انکشاف لپاره مهم نقش لري، مګر دې واقعیت ته باید متوجه شوچې، میتود په ښوونه او روزنه کښې اصل مطلب نه بلکه د مطلب او هدف لپاره یو قالب او قاعده ګڼل کیږي.

فرانسیس بیکن انګلیسی فیلسوف (1561-1626) میتود او اسلوب یو څراغ سره مقایسه کوي او وائي «محقق او یا څیړونکی چې دیو خاص او مشخص میتود او اسلوب لرونکی نه وي هغه مسافر ته ورته وي چې د شپې په توره تیاره کښې امسا په لاس لاره لټوي» په دې لحاظ د هر علمي او تحقیقي عمل د سرته رسولو لپاره د میتود او میتودلوژي څخه کار اخستل لازمي او ضروري ګڼل کیږي. دادی نوموړی اصطلاحات په لاندې ډول توضیح کوو.

**میتود** (Method):- د میتود اصطلاح دیوناني کلمې (Methodoci) څخه اخستل شوی دی او معنیٰ ئې طریقه، روش او تګ لاره

ده. د میتود لپاره مختلف تعریفات ورکړ شوی چې ځینې ئې عبارت دي له:

میتود د هغه منظم طریقه او تګ لارې څخه عبارت دی چې د یو علمي موضوع د درک او زده کړې لپاره انتخابیږی. میتود د هغه منطقي اصولو او اساساتو د تعقیب څخه عبارت دی. چې هدف ته رسید و لپاره عملي کیږي یا په بل عبارت میتود د هغه منظم او پیش بیني شوي منطقي جریان څخه عبارت دی چې ښوونکی د زده کوونکو د تربیتي، ودې او تعلیمي اهدافو د لاس ته راوړلو لپاره تعقیبوی.

میتود خاصیتاً د موضوع او مضمون په مقایسه د نسبي استقلال لرونکی وی، په دې مفهوم چې نه شو کولای د خپل ذهني تمایلاتو په اساس په هر مضمون او موضوع کښې د یو خاص او یکانه میتود څخه کار واخلو بلکه د مختلفو درسي مضامینو او موضوعاتو لپاره مختلف میتودونه شته چې د ضرورت مطابق باید ور څخه کار واخستل شي.

د تدریس میتود د یو ښوونکي لپاره چې په هر ځائی او یا په هر مضمون کښې درس ورکوي د پوره اهمیت او ارزښت لرونکي وي.

ښوونکی یوازې د تعلیمي پروګرام (۱) د عملي کولو مسئول نه دي، بلکه د یو واقعي سازمان ورکونکي شخصیت په توګه د ښوونې او روزنې د قواعدو او توانینو په پلی کولو او د شاګردانو د تعلیمي او تربیتي فعالیتونو په سازماندهي کښې د ابتکاري روحیې او میتودیکي صلاحیتونو لرونکی وی.

د تدریس عملیه په حقیقت کښې د یو سلسله علمي حقائقو او مهارتونو انتقال دی، چې د مدرس یا اموزګار له خوا زده کوونکو ته صورت نیسي.

---

(۱) تیوری های اموزش. دوست محمد (پروانی). وزارت تعلیم وتربیه - ۴ (۸۸ - ۹۴)

د دې دوجانبه عملیې ( ښوونکی او شاګرد ترمینځ ) په جریان کښې چې کوم شی ځمونږ توجه ځانته راجلبوی هغه د درس موضوع او هدف دی ، چې باید په یو معقول او منلی شوی طریقه باندی ترلاسه شي ، دا غوښتنه هغه وخت په واقعي ډول عملی کید ای شی چې د درسي موضوع او تدریسي مېتود ترمینځ رابطه د ښوونکی له خوا په نظر کښې و نیول شي .

هر مضمون حتّی هره درسی موضوع د خاصو درسي میتودونو لرونکي وي مثلًا د ریاضي د مضمون د تدریسي مېتو د له لارې نه شو کولای چې د ژبې د زده کړې په تدریس کښې کار واخلو ، بناءً هره علمي رشته د مېتودونو د یوې مجموعې لرونکي وي چې باید د هغوی څخه د هغه علمي رشتې په تدریس کښې استفاده وشي ، د مېتودونو دیو ګروپ څخه د یو خاص علمي موضوع د تحقیق او څېړنې په منظور کار اخستل د مېتو دیک په نوم یادیږي .

د مېتودونو مؤثریت یوازې د ښوونکي لپاره مطرح نه دی بلکه شاګردانو لپاره هم په زړه پورې اهمیت لري ، په دې معنٰی چې مېتود په لومړي قدم کښې ښوونکي سره مرسته کوي ترڅو خپل درسي پروګرام په صحیح ډول طرحه کړي او په دوهم قدم کښې شاګردانو ته زمینه مساعدوي ترڅو د زده کړې لپاره لازم اقدامات وکړي ، د ښوونکي فعالیت ممکن لکچر ، توضیح او لوستلو باندی محدود وي مګر شاګردان د تدریس په جریان کښې باید واوري ، ولولي ، ولیکي ، مسائل یو د بل سره مقایسه کړي . خپل فعالیتونه منسجم او د آزادانه کارونو اقدام وکړي ، په دې لحاظ وینو چې د شاګردانو فعالیتونه د ښوونکي د فعالیت په مقایسه زیات وی . او بهترین ښوونکی هغه دی چې دی مهم اصل ته متوجه وی او شرائط داسې اماده کړي چې د فعالیت زیاته فیصدي د شاګردانو له خوا سرته ورسیږي ، اما باید وویل شي چې ښوونکی په صنف کښې نه یوازې باید دیو مشاهده کوونکي

شخص په توګه رول ادا کړي ،بلکه ښوونکی باید د شاګردانو لپاره په صنف کښې د یو واقعي رهنما په حیث عمل وکړي.

مېتودولوژي ( Methodology ) : مېتودولوژی د دوه یوناني کلمو مېتود ( Method ) او ( Logy ) څخه مرکب دی ، او د مېتودشناسۍ مېتود پېژندنه او د علمی تحقیقاتو د فن په معنیٰ راغلی دی . په ځینو تألیفاتو کښې مېتود لوژی د اصولو او مېتودونو د منطقی او منظم تشکیل او مطالعې په مفهوم ذکر شویدی ، په واقع کښې مېتودلوژي د علم د هغه منطقی څانګی څخه عبارت دی چې مقصد ته د رسېدو لپاره لاره آواروي ، یا په بل عبارت مېتودولوژي د ذهانت د پکار اچولو هغه منطقی فن څخه عبارت دي کوم چې په علمی تحقیقاتو کښی محقق د غلط فهمۍ څخه ساتی . د ځینو تعریفاتو په اعتبار مېتودلوژي د بشري علومو یوه څانګه ګڼل شوې ده ، چې د علومو د نورو مختلفو څانګو سره اړیکه ولري . د ځینو منابعو په استناد مېتودلوژي د مېتودونو ، د روابطو د ادراک تیوریکي اساس ګڼل شوی دی .

په هرحال محققین او دانشمندان د علمي تحقیقاتو او د مسایلو په حل او فصل کښې ، د علمي قواعدو او مشخصو کړنلارو په تعقیب او فکری نظم په مرسته خپل بحث او استدلالي قوې ته ترهغې وخته پورې دوام ورکوی چې د پرابلم او مسئلې نتائج ترلاسه شی ،کوم چې د مېتودولوژي وظیفه موږ ته راپه ګوته کوی.(۱)

د ښوونې او روزنې په چوکاټ کښې د مېتود او مېتودولوژي اصطلاحات زیات معمول دي داځکه چې زده کړه ، درس او تدریس په حقیقت کښې د یو

---

(۱) روانشناسی عمومي - چاپ پوهنتون کابل ۱۳۶۲ ( ۶۲ )

مشخص او منظم تګ لارې تنظيم او تعقيب ته محتاج دی.

د مېتود او مېتودولوژي اصطلاحات د علمي څانګو او مضامينو په اعتبار تقسيم بندي کېدای شي د مثال په ډول د طبيعي علومو مېتودولوژي، د اجتماعي علومو مېتودولوژي، د سائينس او رياضي ميتودولوژي، د تاريخ مېتودلوژي، د جغرافيې مېتودولوژي، د کيميا د زده کړې مېتودولوژي او نور، همدارنګه د مېتود اصطلاح هم د علومو او مضامينو په اعتبار نامګذاری کېدای شي مثلاً د اجتماعي علومو د زده کړې مېتود د طبي علومو د تدريس مېتود، د پښتو د ژبې د زده کړې مېتود، د بيولوژي د تدريس مېتود او نور.

## د تدريس د عمومي مېتودونو تقسيمبندي

د مېتود او مېتودولوژي د مفهوم په هکله لږ او ډېر معلومات مو تر لاسه کړل د پورتني عنوان مطابق کوښښ کېږي چې د تدريس د عمومي مېتودونو د خصوصياتو او د هغوی څخه د مؤثرې استفادې په منظور معلومات حاصل کړو.

د مېتودونو تشخيص او د هغوی څخه د استفادې معقول چلند د مضامينو په مقايسه د ښوونکي کار آسان او د شاګردانو علاقه او ذوق د درسي فعاليتونو لپاره ژوندی کوي.

د وخت او زمان په تېرېدو سره او د ښوونې او روزنې د چټکې پراختيا په اساس د درسي مېتودونو تعداد هم زيات شوی دی، چې په مجموعي ډول د هغوی تحليل او څېړل په کم وخت کښې د امکان څخه بهر دی، مګر مونږ د دې تربيتي کورس ( Course ) د وخت د تقاضا په پام کښې لرلو سره د ځينو مهمو درسي مېتودونو څخه په ډېر مختصر ډول ياد ونه کوو، خصوصاً هغه مېتودونه چې د ابتدائي

دورو د شاګردانو لپاره مؤثر واقع کیږي.

که چیرې د تدریس عمومي کړنلارې ته دقت وکړو، نو دا به راڅرګند شي چې تدریس له دریو حالتو څخه خالي نه دی، یا به د شفاهي بیان په شکل وی، یا به د عمل له لارې وی او یا به د مشاهدې او لیدنې کسنې په شکل وي. په دې اساس ویلای شو چې د تدریس عمومي میتودونه هم په دریو لاندینیو ډولونو ویشل کیږی، چې عبارت دي له :

① - د شفاهي تدریس میتودونه.

② - دعملي تدریس میتودونه.

③ - دعیني تدریس میتودونه.

د تدریس د عمومي میتودونو پیژندنه او د هغوی دسته بندی مدرسینو ته دا زمینه مساعدوي چې مناسب میتودونه د درسي موضوع د غوښتنې مطابق انتخاب شي.

د درسي میتودونو په ټاکنې د ښوونکي د کار تجربه او مهارت هم داهمیت وړ دي. د درس پلانګذاری او د درسي ممد و موادو برابرول د درسی اهدافو په انتقال کښې پوره برخه او تاثیر لری.

په هرصورت د تدریس عمومي میتودونه چې پورته ذکر شو، هر یو په خپل نوبت سره په نورو مختلفو څانګو تقسیمیږي، مونږ کوشش کوو چې د هریو په هکله یو څه معلومات وړاندی کړو.

## د دوهم فصل پورې مربوط ترتیب کړی شوی چارت



# تمرین

۱- میتود یعنې څه ؟ په تدریس کښې څه رول لری ؟ ښوونکو لپاره څه ارزښت لری ؟ موضوع په لازم ډول وڅیړئ ؟

۲ - میتود لوڅری څخه مطلب څه دی؟ په تعلیم او تربیه کښې څه نقش ، لری ؟ خپل دلائل څرګند کړئ ؟

۳- د تدریس میتودونه په عمومي ډول په څو مهمو څانګو ویشل کېږی واضح يې کړئ ؟

# دریم فصل

## شفاهي یا لفظي ( Oral ) تدریسي مېتودونه

شفاهي دعربي کلمې (شفه ) څخه آخستل شوی دی ، شفه په لغت کښې شونډې ته وائی ، په دې لحاظ کوم درسي پروګرام چې د بیاني الفاظو اوکلماتو په کومک کوم چې د شونډو په مرسته ادا کېږی ، قابل د تطبیق وي ، دشفاهي تدریس په نوم یادیږی اوکوم طرز او طریقه د تدریس چې په دې درسي طرزالعمل کښې پکار وړل کېږی ، د شفاهي تدریسي مېتود په نوم یادېږي .

شفاهي تدریسي مېتود دشاګردانو لپاره ډېر اهمیت لری ، او دمکاتبو په اکثرو مضامینو کښې د دې تدریسي مېتود څخه استفاده کېږی .

د دې لپاره چې د دې مېتود څخه معقوله[1] استفاده شوی وی باید لاندینیو ټکوته توجه وکړو :-

۱- د ښوونکی شفاهي اولفظي بیان باید پرعلمي اساساتو باندی استوار وي ، ښوونکی دموضوعاتو ، حقایقو ، واقعاتو اوحکایاتو تفسیر او ترجماني باید په واقعي ډول وکړی نه په غیر حقیقي او مغرضانه ډول .

۲ - په شفاهي تدریسي طریقه کښې د مطالبو تسلسل باید په نظر کښې ونیول شي ، د دې مطلب په عملي کولو کښې د درسی پلان ترتیبول د ښوونکي کار آسانوی ، چې د درسي پلان په مرسته د درس اهداف او د اهدافو دلاسته راوړلو لپاره د درس مراحل په ښه ډول درجه بندي کېدای شي .

۳ - د ښوونکی شفاهي بیان باید دشاګردانو د ذهني اوعلمي سویې مطابق

(۱) تیوری های آموزش - وزارت تعلیم وتربیه - چاپ ( ۱۳۶۶ ) هـ ش ص (۹۷ - ۹۹ )

وړاندې شي ترڅو موضوع د شاګردانو د فهم او درک جوګه وي.

۴- د مطالبو په انتقال کښې باید ښوونکي د ساده محیطي مثالونو، همدارنګه د ساده او د ضرورت وړ درسي ممدو موادو څخه کار واخلي.

۵- په شفاهي بیان کښې د شاګردانو د ابتکارې دوحیې وده باید په نظر کښې ونیول شي، د دې مطلب لپاره شاګردانو ته د سوال کولو زمینه برابرول، شاګردانو ته د موضوع په هکله د قضاوت مجال ورکول ممد واقع کېدای شي.

طبعًا په ټولو درسي فعالیتونو کښې چې په هر طرز او طریقه وي، د درس اهداف، درس لپاره منظم پروګرام او د کارپلان وسایل او وخت د ښوونکو د توجه او دقت وړ فکتورونو څخه دي.

## د ځینو مهمو شفاهي تدریسي میتودونو تفصیل

۱- د قصې میتود یا قصه یي میتود: قصه په لغت کښې خبر او حکایت ته ویل کېږي، کوم وخت چې درسي موضوع په قصو قصو کښې شاګردانو ته تقدیم شي دې ډول تدریسي طریقې ته قصه یي میتود یا د قصې میتود وایي.

د قصې میتود د شفاهي تدریسي میتودونو په قطار کښې یو مهم درسي طریقه ده، چې د استعمال موارد یې په ټولو مضامینو کښې خصوصًا د ابتدائي دورو د شاګردانو لپاره د ژبې د زده کړې، اسلامیات، اجتماعیات او نورو مضامینو کښې زیات لیدل کیږي.

زموږ په اسلامي کلتور کښې، حکایت او قصه یو خاص ځای لري، خلک په تېره ماشومان قصو او حکایاتو سره زیات علاقه او دلچسپي ښکاره کوي او قصې ته

په غور سره غوږ نیسي.

دقصو په واسطه کولای شو د ژوند حالات، واقعات، اجتماعي مثبت او منفي اعمال ماشومانو ته په داسې شکل توضیح کړو چې له یوې خوا موضوع دوی ته خسته کن واقع نه شي او له بلې خوا دوی ورڅخه د راتلونکی ژوند لپاره پند او عبرت واخلي.

ماشومان روحًا قصو او داستانونو ته زیات ارزښت ورکوي، دقصې میتود د ماشومانو او شاگردانو، د ذهني ودې اخلاقي ارزښتونو او د شخصیت په تکاملي بهیر کښې مهم او ستر رول لوبوی. دقصې مېتود د ماشومانو د ژبنی مهارتونو، اجتماعي روابطو او تاریخي معلوماتو په هکله په زړه پورې مؤثر او کارگر ثابت شویدی.

د قصې د مېتود په برکت کولای شو چې د ماشومانو او شاگردانو په شخصیت کښې د خدای (ج) پرستۍ، ایماندارۍ، صداقت، وفاداری، وطندوستۍ، دیندارۍ، او د ښو اخلاقو روحیه ژوندۍ او برعکس د کفر، الحاد، بیدینۍ، وطنفروشۍ، دروغ او نورو غیر اخلاقی او اجتماعی انحرافاتو په مقابل کښې د شاگردانو د تنفر قوه فعال کړو.

دمثال په ډول: که مونږ وغواړو چې څمونږ شاگردان، مسلمانان، دیندار متعهد، صادق او د ښو اخلاقو خاوندان شي، د انبیاء (ع)، صحابه (رض)، علماء کرام (رح)، مجاهدین (رح) او نیکو شخصیتونو کارنامې، اخلاق او عملکرد په قصو، قصو کښې شاگردانو ته توضیح کړو. برعکس که مونږ وغواړو چې په شاگردانو کښې د بدو اعمالو، کفر، الحاد، کمونیزم، اجتماعی مفاسدو، دروغ، خیانت او بدو کارونو په هکله د تنفر ذهنیت راژوندی کړو، نو باید د کفارو، کمونستانو، ملحدینو او د بدو اخلاقو عملکرد او د هغوی د اعمالو نتائج په انتقادي ډول شاگردانو ته حکایت او توضیح کړو.

د قصې د مېتود په تطبیق کښې محترم ښوونکي باید لاندینیو ټکو ته دقت






او پاملرنه وکړي: (۱)

(۱) قصه یا حکایت باید واقعیت او حقیقت ولري. د دې مطلب څخه هدف دا دی چې ماشومانو ته باید حتی الوسع کوشش وشي چې قصه کتابي جنبه ولري، ځینې اوقات داسې کېږي چې لیکوالان او داستان نویسان د ټولنې د اصلاح په منظور مضامین ترتیب او نشرته يې سپاري. دا ډول داستانونه هم باید په داسې ډول ترتیب او تنظیم شي چې حقایقو ته نژدې وي.

عموماً د وړو ماشومانو لپاره هغه قصې باید په نصاب کښې شامل شي کوم چې حقیقت ولري.

(۲) - د قصې ویلو په وخت کښې باید ښوونکی د شاګردانو په مقابل لوړ ولاړ وي یعنې ښوونکی په داسې یو ځای کښې قرار ولري، چې شاګردان د هغه حرکات او کردار د سر په سترګو ووینې.

(۳) - د قصې ویلو په وخت کښې باید ښوونکی د تمثیلي حرکاتو، اشاراتو او احساساتو څخه کار واخلي، احساسات په دې مفهوم نه چې ښوونکی خپل اخلاقي ملایمت په قهر او غضب تبدیل کړي، بلکه ښوونکی باید د قصې ویلو په وخت کښې په ځان کښې دا ډول احساس راښکاره کړي چې شاګردان حتی داسې فکر وکړي چې په خپله ښوونکی په دې واقعه کښې موجود وُو.

(۴) - د قصې په وخت کښې باید ښوونکی د ساده کلماتو او جملاتو څخه کار واخلي، یعنې د تظاهر او خودنمائي څخه خودداري وشي او د شاګردانو د سوئې مطابق ادبیاتو څخه کار واخستل شي.

(۵). د قصې ویلو په وخت کښې د ښوونکی لهجه او د اواز فریکونسي هم

---

(۱) تیوری های آموزش - وزارت تعلیم و تربیه - چاپ (۱۳۶۶) هـ ش ـ ص (۹۹ - ۱۰۰)

قابل د توجه وی یعني د ښوونکي لهجه نرمه او د آواز لوړوالی ئې په داسې شکل وي چې ټول شاګردان د هغه آواز په عادي ډول واوري.

(٦) - د قصې وخت هم قابل د تصور دي، چې باید د شاګردانو د ذهني او جسمي ودې مطابق قصه انتخاب او تشریح شي مثلاً د ابتدائی دورو د شاګردانو لپاره د قصې ویلو وخت باید د (10 - 5) دقیقو په شاوخوا وشرخېږی.

(٧) په قصه کښې باید د خلکو عنعنات، کلتور او معتقدات په نظر کښې ونیول شي، همدارنګه د قصې په کلماتو کښې ضد او نقیض موجود نه وي.

باید وویل شي چې د قصې په مېتود کښې ځنې نواقص هم لیدل کېږي لکه داچې یوازې نظری جنبه لري او شاګردانو ته په عمل کښې برخه نه ورکول کېږي، له بلې خوانه عملی مهارتونه په کښې نه تدریس کېږي.

## ۲- د سوال او جواب (صحبت) مېتود

دا مېتود د تعلیم او تربیې په برخه کښې ډېر پخوانی تاریخ لري. د صحبت یا سوال وجواب ځنې مطلب د یو موضوع د حل او فصل په هکله د دوو یا زیاتو کسانو ترمنځ خبرې او بحث کول دي یا په بل عبارت د ښوونکی او شاګردانو تر منځ د یو درسي موضوع د حل او فصل په منظور سوال او جواب ته د صحبت مېتود وائي.

د دې مېتود څخه د درسي مسائلو په افهام او تفهیم کښې خصوصًا په ابتدائی دوره کښې په زیاته پیمانه کار آخستل کېږی، داځکه چې د ابتدائي دورې شاګردان د عمر له نظره د ودې په ابتدائي مراحلو کښې قرار لري او د هغوی ذهني

قوه د روانشناسۍ له نظره په یو درسي ساعت کښې د هر وخت لپاره یو مشخص موضوع ته مرکوز ساتل کېدای نه شي، نو په کار دادي چې درسي موضوع په متعددو قطعاتو تقسیم شي ترڅو د شاګردانو د توجه د تجدید زمینه مساعده شي، له بلې خوا نه شاګرد په روانې لحاظ د سوال په مقابل کښې احساس د مسؤلیت کوي ترڅو د ښوونکي پوښتنې ته جواب تهیه کړي.

حضور صلی الله علیه وسلم[1] په خپل ارشادانو کښې فرمائي «علم د خزانې مثال لري چې سوال یا پوښتنه کول د هغه کنجي ده، سوال وکړئ چې په سوال کولو کښې څلورو کسانو ته اجر دی، پوښتونکي، جواب ورکوونکي، آورېدونکي او دوستان د هغوئ».

د سوال و جواب مناسب او عملي طریقه دا ده چې درسي موضوع د ښوونکي له خوا په سوالونو تقسیم شي او سوالونه په صنف کښې د ښوونکي او شاګردانو په ګډه فعالیت حل او فصل شي، د سوالونو او جوابونو سلسله تر هغه وخته پورې دوام کوي چې درسي اهداف په واقعي ډول انتقال شي.

د دې لپاره چې د دې میتود څخه په ښه توګه استفاده شوې وي، باید لاندینیو څو موادو ته دقت وکړو:

۱ - درسي موضوع باید په سوالونو تقسیم شي.

۲ - د درسي موضوع تسلسل باید په سوالونو کښې رعایت شي.

۳ - سوالونه باید د ښوونکي له خوا داسې طرحه شي چې شاګردان په واقعي ډول غور او تفکر ته میلان پیدا کړي.

۴ - د سوالونو جوابونه باید نسبتًا مفصل وي.

۵ - د دې میتود د ښه تطبیق لپاره د شاګردانو قبلي خبرتیا شرط دی.

---

(۱) احیاء العلوم (ابوحامد غزالی رح) ترجمهٔ مؤید الدین خوارزمی. چاپ (۱۳۶۴ هـ ش - ص ۲۵)

مثال :- که چیرې څمونږ درسي موضوع د دریم صنف د دینیات شریف په مضمون کښې د اوداسه فرضونه وی او غواړو چې دا موضوع د صحبت د مېتود په مرسته تدریس کړو، نو اصول دا دی چې :-

۱ - مخکښې له مخکښې شاګردانو ته باید دا ذهنیت ورکړ شوی وي چې زمونږ دا درس د صحبت د مېتود له لارې عملي کېږی.

۲ - دا چې درس د اول څخه تر آخره پورې په سوالونو تقسیم شوی وي لکه :

a - په اوداسه کښې څو شیان فرض دي ؟ اوکوم کوم دي ؟

b - د ټول مخ څخه مطلب کومې حصې دي چې مینځل ئې په اوداسه کښې فرض ګڼل شوی ؟

c - د لاسونو پریمینځل ترکوم ځائ پورې فرض دی ؟

d - دسر د څلورمې حصې څخه مطلب کومه حصه ده ؟ څوک ئې عملاً ښودلائ شي ؟

e - د دواړو پښو پریمینځل ترکومه ځایه پورې فرض دی ؟ څوک ئې عملاً ښودلائ شی ؟

f - څلور واړه فرضونه په اوداسه کښې څوک ښودلائ شی ؟

پورتني سوالونه باید هریو په داسې ډول طرحه شي چې ټول شاګردان فکر اوسوچ ته مجبور شی ترڅو د ښوونکي په اشاره داوطلب شاګرد، د جواب لپاره انتخاب شي، د هرغړي مشخصه او د فرضیت حدود ئې باید عملاً شاګردانو ته وښودل شي، د ضرورت په وخت کښې د ښوونکي مرسته او مداخله ضروري ده، ترڅو حقیقت ټولو ته توضیح شي.

## ۳ - د تفهیم میتود

تفهیم لغتاً پوهولو ته وائی او دیو درسي میتود[1] په توګه د تفهیم څخه مطلب هغه تدریسي میتود دی چې د هغې په مرسته شاګرد ښوونکي له خوا د درسي موضوع په معنی او مفهوم باندی و پوهول شي معمولاً په ټولو علمي څانګو او مضامینو کښې د مبادی په توګه ځینې تعریفات، قواعد او اساساتو زده کړې ته ضرورت وی، همدارنګه هغه ادبی مفاهیم او اشعار چې په ښکلی نثر او یا نظم تنظیم شوی وی پوره تحلیل او توضیح ته محتاج وی چې باید ددې میتود په مرسته شاګردانو ته تفهیم شي.

د دیني علومو په زده کړه کښې، د ژبې په زده کړه کښې، ریاضي، هندسه، فزیک، کیمیا او نورو کښې د تفهیم د میتود څخه اکثراً استفاده کیږي.

د دې میتود په تطبیق کښې تعامل دا دی چې ښوونکی کوشش کوی چې د درسی موضوع د وضاحت لپاره د عمومی او محیطی مثالونو دراوړلو څخه کار واخلی تر څو شاګردانو ته درسي مطلب د جذب او هضم وړ وګرځي، طبعاً د دې میتود په عملي کولو کښې ذهني قوې باندې زیات فشار واردیږي، ترڅو موضوع د فهم او بصیرت له لارې درک او شاګرد کښې د انتقال قدرت پیدا شي.

د درسی موضوع د غوښتنی مطابق که چیرې د تفهیم د میتود په مرسته غواړو خپل تدریس شروع کړو باید لاندینو څو ټکو ته توجه ولرو.

۱- د صنف فضاء باید آرامه او مطمئنه وی.

۲- د درسي موضوع د وضاحت لپاره، عمومي او ساده مثالونو څخه باید کار واخستل شي.

---

(۱) تیوری های آموزش. وزارت تعلیم وتربیه. چاپ (۱۳۶۶) هـ.ش.م (۱۱۰)

۳ - درسی مواد باید په مکمل ډول تهیه او ترتیب شي.

۴ - تکرار او تمرین باید له نظره ونه غورځول شی، خصوصًا په مشق او تمرین کښې شاګردانو ته پوره برخه ورکول د دې مېتود د عمده وُ شرائطو څخه دي.

مثال :- غواړو د پنځم صنف د ریاضی په مضمون کښې د کسر موضوع شاګردانو ته تفهیم کړو، د دې لپاره چې شاګردان د کسر په ماهیت او مفهوم د حساب د علم له نظره و پوهول شي د تفهیم د مېتود د غوښتنې مطابق باید په لاندې ډول عمل وکړو.

a - یو شی را اخلو مثلًا یوه دانه منه د شاګردانو په مخکښې د چاقو په واسطه نیمائی کوو او د شاګردانو څخه پوښتنه کوو چې دې عمل ته مونږ او تاسو په محیطي اصطلاح څه وایو؟ طبعًا شاګردان به وائی چې دې عمل ته (ماتول) وایو، په دې وخت ښوونکي د شاګردانو د جواب په تائید سره وائی چې (مګر دې عمل ته د حساب په علم کښې په لغوی لحاظ کسر) وائی، په همدې شکل یوه پاڼه کاغذ را اخلو د قیچي په مرسته په څلورو مساوی برخو باندی ویشو او یوه برخه ئې یو شاګرد ته ورکوو، او شاګردانو نه پوښتنه کوو چې دا یوه برخه د تقسیم شوي کاغذ څومه برخه ده؟ شاګردانو د خپلو معلوماتو مطابق ځواب وائی مګر ښوونکی باید اصل مطلب ($\frac{1}{4}$) شاګردانو ته په شفاهی ډول او همدارنګه د تورې تختې په کومک اعلان کړی، دا عمل د نورو مثالونو او همدارنګه د بصري وسائلو په مرسته باید تکرار شی او په آخر کښې د نتیجې په توګه د کسر اصلی تعریف (کسر لغتًا ماتولو ته وائی او د حساب په علم کښې که یو شی په څو مساوی برخو باندی وویشو او د هغه څخه یو یا څو برخې واخلو دې عملیې ته کسر وائی) د کسر لیکل شوی تعریف شاګردانو سره تر هغه وخته

تکرارو ترڅو ټولو ته تفهیم شي.

## ۴ :- د قرائت میتود :

د قرائت میتود د شفاهي تدریسي میتودونو په ردیف(۱) کښې معمولاً د ټولو مضامینو لپاره عمومیت لري. دقرائت څخه مطلب د درسي موضوع لوستل دي چې د کتاب، چارت، کاردونو او یادداشتونو لخوا د اجراء وړ وي.

د قرائت میتود د شاګردانو د ژبنی مهارتونو لکه لوستل لیکل او بیاني قوې د ودې لپاره پوره کومک او مرسته کوي.

په ابتدائي دوروکښې چې اکثراً شاګردان د حروفو پېژندل، کلمه او جمله جوړولو ته زیات ضرورت لري، د قرائت د میتود څخه مؤثره استفاده کېږي، تر څو شاګردان د لوړو ټولګیو د درسي او مطالعاتي کتابونو څخه د ښه استفادې لپاره اماده شي.

طبعًا هغه درسي موضوعات چې د هغوی حفظ، ترجمه او تحلیل ته ضرورت وي، لومړی باید ولوستل شي او وروسته عند الزوم اقدام وشي.

قرآنکریم، دینیات، صرف، نحو، تجوید، پښتو، دري، ادبي پارچې، نظم او اشعار د دې میتود په مرسته په ښه ډول تدریس کېدای شي، برسېره پر دې مضامینو په ساینس او اجتماعیاتو کښې هم د دې اصول څخه کار اخستل کېږي.

په مکاتبو او مدارسو کښې دا میتود په عنعنوي ډول له ډېرې پخوا زماني راهیسې رائج دی.

د قرائت د میتود په تطبیق کښې باید لاندینیو ټکو ته توجه ولرو:-

1 - د درسي موضوع دقیقه پلانګذاري.

---

(۱) تدریس بهتر مضمون جغرافیه مؤلف ومترجم گل احمد - سال چاپ (۱۳۷۰) ش کمیته بلجیم ص (۳۲-۴۰)

# لومړی فصل: عمومیات

## تعلیم او تربیه ( Education )

ځنی تعلیم او تربیه د ښو اخلاقو او صفاتو سره مترادف ګڼی، کله کله تربیت د روشنفکرانو خاصه ګڼل کیږي، مګر واقعیت دا دی چه د تعلیم او تربیې اصطلاحات (تعلیم - تربیت) که څه هم یو د بل سره نژدے اړیکه او رابطه لری، خو بیا هم سره یو نه دی بلکه تعلیم لغتاً د علم او یا د یو مطلب ښودنه ده دیوکس له خوا بل کس ته او له تربیت څخه مطلب د یوکس بدنی او اخلاقی یا په بل عبارت روحي او جسمي روزنه ده او محصله به ئې مثبت او مطلوب تغیرات وی کوم چې د انسان په شخصیت کښې تظاهر کوي.

افلاطون ( Plato ) یوناني فیلسوف، تربیت[1] ته د انسانی فرد د جسمي غړو او روحی احساساتو د روزنې نوم او تعلیم ته د هغه علم نوم ورکړی و کوم چې ټولنې ته نظم او سازمان ورکوی.

امام غزالي رح وائې (علم او د علم حصول له یوې خوا انسان خدای جل جلاله ته نژدې کوي او له بلې خوا انسان ته په ټولنه کښې پت او عزت وربخښی.

ابن خلدون رح وائې ( تعلیم څخه مطلب د علم[2]، معرفت او حقیقت ترلاسه کول دی، کوم چه د هر انسان فطري او پیدایشي حق دی، تربیت د دوو اساسي هدفونو لرونکی دی، یو دیني هدف چې مقصد ئې آخرت لپاره امادګي ده او بل ئې دنیوي هدف دی چه مطلب ئې د نیوي ژوند لپاره تیاری دی).

---

(۱) راه نو در تعلیم و تربیت - نګارش حسین کاظم زاده - چاپ تهران (۱۹۲۵) ص (۲۰)

(۲) فرهنګ علوم رفتاری - تالیف علی اکبر شعاری نژاد - چاپ تهران (۱۳۶۴) ص (۸۳)

2 - د ښوونکي له خوا د درسي موضوع قبلي مطالعه.

3 - د درسي موضوع د ښه تدريس لپاره د درسي ممدو موادو آماده کول لکه چارت، د لغتونو کارډونه، د سوال او جواب لپاره سواليه کارډونه او نور.

4 - شاګردانو ته پوره پوره برخه ورکول.

د قرائت مېتود د لساني قوې په وده کښې چې د افهام او تفهيم اساسي وسيله ده د توجه وړ مېتود دی، خصوصاً د ژبې په زده کړه چې اساسي مهارتونه ئې (آورېدل، خبرې کول، لوستل او ليکل) دی[1]، د دې مېتود څخه زيات کار اخستل کېږي.

## ۵ :- د مذاکرې مناقشې مېتود :

لکه چې د نوم څخه ئې معلومېږي د مذاکرې او مناقشې مېتود، د تدريسي شفاهي مېتودونو په مجموعه کښې د هغه منل شوي مېتود څخه عبارت دی چې شاګردانو ته د درسی موضوع په حل او فصل کښې د پوره برخې آخستنی حق ورکوي.

اکثراً ښوونکی درسي موضوع او يا د شاګردانو ځينې عمده مشکلات د زده کوونکو د نظريا تو د اظهار لپاره مطرح کوي او د ټولګي ټولو غړو ته د موضوع په هکله د مناقشې حق ورکوي ترڅو د شاګردانو د مذاکرې او مناقشې په نتيجه کښې مطلوب هدف ترلاسه شي.

د مذاکرې او مناقشې په مېتود کښې طبعًا شاګرد محور د کار وي او د موضوع په حل او فصل کښې شاګردان پوره پوره قضاوت کولائ شي.

د مناقشې په مېتود کښې د ښوونکي مهارت په دې کښې[2] دی چې موضوع د

---

(۱) روانشناسی تربيتی - ترجمه پوهاند محمد فاضل - سال چاپ (۱۳۵۲) ه ش - م (۱۶)

(۲) تدريس بهتر مضمون جغرافيه - مؤلف - ګل احمد - سال چاپ (۱۳۷۰) ه ش کميته بلجيم - ص (۳۳)

مېتوديکي صلاحيتونو په نظر کښې نيو لو سره په داسې شکل طرحه کړي، چې شاګردان مذاکرې او مناقشې ته تحريک شي.

مثلاً د پنځم صنف د جغرافيې استاد غواړي د ځمکې د وضعي حرکت موضوع د مناقشې د مېتود له لارې شاګردانو ته تفهيم کړي، د دې مطلب لپاره شاګردانو ته وائي ستاسو په نظر ( د ځمکې د خپل محور په شاوخوا ګرځېدو څخه د ځمکې پر مخ کوم حوادث منځته راځي ؟ )

د سوال د طرحې څخه وروسته، ښوونکې بايد د مېتوديکي مهارتونو په کومک د صنف پوره کنترول، نظارت او د ضرورت په وخت کښې د مناقشې د جريان رهنمائي وکړي.

په دې مېتود کښې د موفقيت چانس د شاګردانو ممکينې معلوماتو او تجاربو سره متناسب دی.

د صنف تنظيم او د مناقشې د غوښتنې مطابق د درسي مهد و موادو برابرول لازمي او ضروري ګڼل کېږي.

د پورتنيو خصوصياتو په نظر کښې نيولو سره څو لاندينيو ټکو ته هم بايد توجه ولرو (۱):

a - د شاګردانو خبرتيا.

b - د مناقشې لپاره يو منظم پلان.

c - د مناقشې ور موضوع تحليل او نتيجه ګيري.

د مذاکرې او مناقشې په مېتود کښې د شاګردانو ازادانه قضاوت ډېر اهميت لري، مګر په دې شرط چې د موضوع څخه خارج نه شو.

---

(۱) د تدريس عمومي اصول. ليکونکی شاه ولی ( عطائی ). د چاپ کال ( ۱۳۶۸ ) هـ ش صفحه ( ۱۲ ).

## ۶ - د لکچر میتود ( Lecture Method )

لکچر تقریر او خطابي ته وائي او د درسي میتودونو په ردیف کښې د هغه شفاهي تدریسي طریقې څخه عبارت دی چې په هغې کښې درسي موضوع د ښوونکي له خوا (د مناقشې څخه په غیر) شاګردانو ته په تقریري ډول وړاندي کېږي. لکچر طبعًا د تدریس په مقصد ورکول کېږي.

د لکچر میتود په تعلیم او تربیه کښې ډېر پخواني تاریخ لري ، په پخواني یونان کښې د درسي موضوعاتو په افهام او تفهیم کښې دا میتود عمومیت درلود.

د لکچر میتود معمولاً د لوړو صنفونو د شاګردانو لپاره د تطبیق وړ وی، داځکه چې د وړو ماشومانو د فکری قواوُو انسجام او د توجه تمرکز د نسبتًا ډېر وخت لپاره یو مشخص درسی موضوع ته نا ممکن دي.

د لکچر د میتود څخه تقریبًا په ټولو مضامینو کښې لکه اسلامیات ساینس، فلسفي نظریاتو او نورو اجتماعي رشتو کښې کار آخستل کېږي، مګر د جغرافیې تاریخ ، . . . ادبیات او نورو اجتماعی څانګو او مضامینو کښې عمومیت لري.

د لکچر د میتود څخه اکثرًا د نوی درسي موضوعاتو د تدریس لپاره کار آخستل کېږی ، مګر کله کله تکراری درسونو کښې هم ددې میتود څخه استفاده کېږي.

د دې لپاره چې ، د شاګردانو د ستړیا او ذهني اختلالاتو څخه مخنیوی شوی وي باید د لکچر ورکولو په وخت کښې د ضرورت مطابق سمعي او بصري وسائلو څخه د درسي ممدو موادو په توګه کار واخستل شی .

د لکچر تهیه او ترتیب د ښوونکی د درسي آمادګی د مهمو اجزاوُو څخه شمېرل کېږي ،لیکن لکچر به هغه وخت د شاګردانو د علاقې او دلچسپۍ سبب وګرځي

چې د محیطي ساده مثالونو سره ملګرې شي.

لکچر ورکوونکی باید په دې پوه وي چې دعمراو سویې له نظره کوموکسانو ته مخاطب دی، د شاګردانو ټولنیز ترکیب او د ټولنې کلتوري مشخصات په دې هکله د توجه وړ دي.

لکچر باید په زړه راښکونکی کلمانو شروع او حقایق په تدریجي ډول توضیح کړي، مغلق او پیچلې مسایل باید د مثالونو په راوړلو واضح شي، د درسي موضوع څخه په غیر اضافي موضوعاتو ته باید وخت ورنه کړی شي.

د ښوونکي په لکچر ورکولو کښې د درسي موضوع منطقي تسلسل باید له نظره ونه غورځول شي، د ښوونکی مهارت په دې کښې دي چې لکچر د درسي ساعت مطابق ترتیب شوی وی، داځکه چې د درسي ساعت څخه کښې د لکچر ختمېدل د ښوونکی دعدم امادګۍ څخه نمایندګی کوي.

د لکچر ورکوونکي ادبي مهارت، میتودیکي صلاحیت، اجتماعي برخورد او اخلاقي چلند د لکچر د تعلیمي او تربیتي اهدافو په لاس ته راوړلو کښې د مهموعواملو څخه دی.

د لکچر په وخت کښې د درس متن او اساسي ټکي باید په نظر کښې ونیول شي، د آواز اعتدال د لکچر په جریان کښې باید رعایت شی.

یوه ډېره مهمه موضوع چې د لکچر په میتودیکي چلند کښې د اهمیت وړ دی، هغه :ادی چې آیا لکچر په ډېر سرعت سره ورکړی شی او یا داچې ډېر رو تقدیم شي؟

ځنې مدرسین په ډېرګندۍ سره لکچر ورکوي چې په دې صورت کښې د لکچر اهمیت له منځه ځي او ځنې معلمین په ډېرلوړ سرعت لکچر ورکوي چې په نتیجه کښې شاګردانو ته ګران تمامېږي یعنې شاګردان نه شي کولای د ښوونکي د بیان څخه درسي اهداف تر لاسه کړي، د دې څخه دا معلومېږي چې د لکچر

مؤفقیت په دې کښې دی چې نه ډېر سریع او نه ډېر کندوي بلکه معتدل او په نورمال ډول ادایه شي .

په کم وخت کښې ډېرو شاګردانو ته د ډېرو درسي موضوعاتو تدریس، شاګردانو ته دبیاني قوې د ودې جرئت، دشاګردانو په ادبي مهارتونو کښې وده او د لغاتو زیاتوالی او شاګردانو ته دمطالعې روحیه ورکول دلکچر د مېتود د عمدؤو ګټو څخه دی .

د لکچر په مېتود کښې ځنې مشکلات هم لیدل کېږي چې عبارت دی له :-

۱ - د شاګردانو د فردي اختلافاتو په نظر کښې نیولو سره د ټولو شاګردانو په خوښه دیو واحد لکچر تنظیمول ډیر مشکل کار دی .

۲ - د لکچر مېتود طبعاً یو معلم متمرکز طریقه ده ، نوځکه شاګردانو ته برخه ورکول د لکچر په جریان کښې غیرعملي دی .

۳ - په دې مېتود کښې د شاګردانو ارزیابي په واقعي ډول ناممکن دي .

۴ - یو عمده مشکل په دې مېتود کښې دا دی چې دابتدائي دورو د شاګردانو لپاره مؤثر نه تمامېږي .

# دریم فصل پورې مربوط ترتیب کړی شوی چارت



# تمرین

۱ - د شفاهي یا لفظی تدریسي مېتودونو څخه مطلب کوم ډول درسي طریقې دي مثال سره یې توضیح کړئ؟

۲ - د قصې د مېتود په تطبیقي پروسه کښې ښوونکی باید کوم خصوصیات په نظر کښې ونیسي؟ د دې مېتود د استعمال موارد په کومو دورو او کومو مضامینو کښې زیات لیدل کېږي؟ موضوع د ساده مثالونو په مرسته روښانه کړئ؟

۳ - صحبت څخه مطلب څه دی؟ آیا د دې مېتود څخه د ابتدائي دورې د شاګردانو د تدریس لپاره کار اخستلای شو؟ څنګه او په څه ډول؟

۴ - تفهیم یعنې څه؟ د دې مېتود څخه د کومو موضوعاتو د تدریس لپاره اکثراً کار آخستل کېږي؟ د دې مېتود په تطبیق کښې ښوونکی باید کوم مشخصات په نظر کښې ونیسي؟

۵ - د قراءت د مېتود څخه اکثراً په کومو مضامینو او د کومو مهارتونو د تقویت لپاره کار آخستل کېږي؟ د دې مېتود په تطبیق کښې کوم ډول درسي ممد موادو ته زیات ضرورت وی؟

٦ - د مناقشې د مېتود په تطبیق کښې د سوال د طرحې څخه وروسته، د ښوونکي اساسي وظیفه څه ده؟ موضوع د یو مثال په راوړلو توضیح کړئ؟

۷ - د لکچر د مېتود څخه اکثراً په کومو مضامینو او د کومو دورو د شاګردانو لپاره استفاده کېدای شي؟ د دې مېتود په تطبیق کښې ښوونکی باید کوم عمده او ضروري ټکو ته توجه ولري؟ موضوع په خلاصه ډول وڅېړئ؟

# څلورم فصل

## دعملي تدريس مېتودونه

دعملي زده کړې اهميت په دې کښې دی چې په دې ډول زده کړه کښې دزده کوونکو حسي او ذهني قواوې په کړه دموضوع په زده کړه کښې پکارلوېږي، په عملي زده کړه کښې دشاګردانو دفعاليت ونډه ددرس په جريان کښې زياتوي.

دزده کړې په جريان کښې دشاګرد عملي برخه آخستنه په شاګرد کښې دابتکار قوه ژوندۍ کوي، شاګرد دلاسته راوړل شوو معلوماتو څخه دعملي استفادې جرئت پيداکوی، دتجاربو په عملي کولو کښې شاګرد دخارجي دنيااو محيطي عواملو او پرابلمونو په مقابل کښې دحل لاره لټولای شي.

په تدريس کښې دمجسمو درسي ممدو موادو څخه استفاده، شاګردانو باندې مشق او تمرين، لاسي کارونه، منظم سپورت، نظامي تعليمات، تجربوی او لابراتواری عمليات، علمي سيلانتوب، عملي کارونه او نور دعملي تدريس اوعملي زده کړې دعمدوو مثالونو څخه دی.

عملي تدريس اکثراً په ټولو مضامينو کښې قابل درعايت دی، مګر په ځينو مضامينو کښې عموميت لری مثلاً اسلاميات، دژبې په زده کړه، رياضيات، ساينس اوطبيعي علومو کښې زيات رواج لري.

په حقيقت کښې دعملي تدريسي مېتود څخه مطلب هغه مېتودونه دی، چې په هغو کښې دعملي فعاليت سهم په تدريس کښې زيات وی، دعملي تدريسي مېتود په تطبيق کښې دکاردمؤثريت په منظور څو لاندينيو ټکوته بايد پوره دقت ولرو.

۱ - دعملي فعاليت لپاره دکار پلان بايد مخکښې له مخکښې ترتيب شي.

۲- دعملي کارونو اهداف او مطالب باید ښوونکی او شاگردانو ته واضح وي.

۳- د رسي ممد مواد او دعملي کارونو وسایل باید مخکښې له مخکښی آماده شي.

۴- د درسي او عملي کارونو د وسایلو په هکله شاگردانو ته باید مخکښې له مخکښې معلومات او د استعمال طریقه ئې تمرین شوي وي.

۵- د درسي فعالیت په جریان کښې شاگردانو ته باید پوره وضاحت ورکړی شي -

۶- ښوونکي د درسي فعالیتونو په جریان کښې باید پوره مواظبت او کنترول ولري او د ضرورت په وخت کښې د کار رهنمائي او د شاگردانو سره د مشکلاتو په حل کښې مرسته وکړي.

# دځینو عملي تدریسي میتودونو تفصیل

## ۱- مشق او تمرین :-

مشق او تمرین د زده کړې دعنعنوی او طبعي طریقو څخه گڼل کېږي، مگر په دې شرط چې فهم او بصیرت سره ملگري شي په مشق او تمرین کښې د ماشوم (شاگرد) حسي او ذهني قواوې په واقعي ډول وده مومي او کومه زده کړه چې د مشق او تمرین په برکت ترلاسه کېږي کېدای شي د انسان په عملی ژوند کښې دائمی بڼه پیدا کړي.(۱)

د مشق او تمرین اهمیت په دې کښې دی چې د شاگردانو ترلاسه شوی علمي او فني زده کړې ته ثبات او استحکام بخښي او شاگرد د زده کړی شوی حقائقو څخه د استفادې لپاره په مختلفو اوضاعو او شرائطو چمتو کوي.

---

(۱) راه نو - در تعلیم و تربیت - نگارش حسین کاظم زاده - سال چاپ (۱۹۲۵) م ۳، (۹۳)

د مشق او تمرین د میتود څخه د ژبې په زده کړه ریاضی او فزیک په مضامینو کښې اکثرًا استفاده کیږی مګر باید وویل شي چې په نورو مضامینو کښې هم د دې میتود څخه کار اخستلائ شو مثلاً جهادي تعلیمات، سپورت او نور.

په ابتدائي دورو کښې د مشق او تمرین لپاره د ډیرو ساده او محیطی موادو څخه استفاده کولائ شو، مګر څنګه چې په لوړو صنفونو کښې د تدریس شکل تغیر کوي د مشق او تمرین وسایل هم تغیر کوي.

د ژبې په زده کړه کښې د حروفو او آوازونو پیژندنه ، دالفاظو او کلماتو ادا کول او په مجموعي ډول د ژبې د اساسي مهارتونو زده کړه د مشق او تمرین له لارې عملي کیږي.

د خط صحیح لیکل او د خط ښکلا د مشق او تمرین په مرسته په شاګردانو کښې استحکام مومي چې د مختلفو وسائلو په کومک لکه توره تخته، د مشق تخته، سلتي تخته، کاغذ او نورو باند عملی کیږي.

په ریاضي کښې عدد نویسي، د حساب څلورګونې عملیې او نور حسابی قواعد د مشق او تمرین له لارې زده کیدائ شی، هندسي قضایا او هندسي شکلونه د مشق او تمرین په کومک په آسانه زده کیږي.

رسامي، نقشه کشي او خطاطی د دې میتود په مرسته قابل د زده کړې دي، لنډه دا چې د دې میتود څخه په اکثرو مضامینو کښې د ښوونکو له خوا باید کار واخستل شي، مشق او تمرین په عملي زده کړه کښې ستر رول لري.

د مشق او تمرین د میتود په عملی تطبیق کښې د درسي پلان[1]، درسي وسایل او موادو په خوا کښې د عملي زده کړې د اهدافو د لاسته راوړلو په منظور

---

(۱) تیوری های آموزش - وزارت تعلیم وتربیه - سال چاپ (۱۳۶۶) هش ص (۱۱۵ - ۱۱۶)

د شاه ولی الله (دهلوی رح) په نظر تعلیم د یو بامقصد عمل ځخه عبارت دی چې حالات سموي او لومړنی هدف یې د الله جلّ جلاله پېژندنه ده، دوهم هدف یې دادی چې انسان هرقسم فنون هنر او صنعتونه زده کړی ترڅو ټولنې لپاره ګټور غړی شي، دریم هدف یې دادی چې انسان دکائناتو او دکائناتو دَ خالق په رازونو باندی فکر او غور وکړی.

دښوونې او روزنې ځنې ماهرین تعلیم او تربیه په انسان کښې دصحیح قضاوت وده بولي.(۳)

یو تعداد دانشمندان تعلیم او تربیه د ماشوم آماده کېدل آینده ژوند لپاره بولی.

بناءً د تعلیم او تربیې اساسي هدف دانسان او انساني واحداتو روحي او جسمي وده ده، ترڅو د ټولنې د فعال او مطلوب غړو په توګه ټولنې ته تقدیم شي، نو ویلای شو چې:- تعلیم او تربیه د تجاربو دهغه تجدیدی جریان ځخه عبارت ده چې په هغه کښې د ټولنې د ودې او انکشاف موجبات آماده کېږي یا په بل عبارت تعلیم او تربیه د معلوماتو، مطالبو، حقائقو او دمنل شوو علمي ارزښتونو د انتقال ځخه عبارت ده، په دې شرط چې د انسان په سلوك او کردار کښې د مطلوبو او مثبتو تغیراتو د راوستونکي وي.

---

(۱) اصول وفلسفه تعلیم و تربیت. تالیف دکتر علی شریعتمداری - چاپ ایران - سال (۱۳۶۷) ۳ (۷۵-۹۰).

لاندینیو عواملوته باید پوره دقت او پاملرنه وشي :-

۱ - د مشق او تمرین د وخت ټاکل -

۲ - د مشق او تمرین د هدایاتو عملي کول.

۳ - د مشق او تمرین د عملي اجراء په هکله وضاحت ترڅو شاګردان د مشق او تمرین په طرز او طریقه باندې پوه او په عملي ډول کښې له یوې خوا حقائق په آسانه تر لاسه کړی او له بلې خوا نه د حاصل شوي زده کړې څخه معقوله استفاده وکړای شي.

## ۲ :- د تجربې او آزمایښت میتود :

د علمي حقایقو په څېړنه او کشف کښې تجربه فوق العاده رول لري، د روانشناسۍ په تحقیقاتو او څېړنو کښې په معاصره زمانه کښې د تجربوي اصول څخه په زیاته پیمانه کار آخستل کیږي.

تجربه لغتاً د آزمایښت او امتحان په معنئ راغلی ده ، اصطلاحاً تجربه د هغه عملي زده کړې څخه عبارت ده ، چې د هغه په مرسته د حقائقو قانونمندئ کشف او د هغه د استفادې امکانات ترلاسه شي ، په تجربه کښې د علمي اصولو او قواعدو څخه پوره پوره مرسته اخستل د کار لازمي او اساسي جزء ګڼل کیږي.

علمي تجربه د هغه آزمایښت څخه عبارت ده ، چې د فرضیې د ثبوت او درستوالي لپاره د علمي اصولو له لارې سرته رسیږي -

د تجربې میتود څخه مطلب هغه عملي تدریسي طریقه ده ، چې په هغې کښې د زده کړې شرائط او اوضاع زده کوونکو لپاره اماده او په پوره کنترول سره ستر مطالعې لاندې ونیول شي.

د تجربې د میتود څخه معمولاً د سایېنس او طبعي علومو په مضامینو کښې لکه طبعیت پیژندنه ، کیمیا ، فزیک ، بیولوژي ، ژیولوژی او نورو کښې اکثراً استفاده

کېږي .

په مدارسو او مکاتبو کښې د درسي پروګرامونو په تطبیق کښې د تجربي اصول څخه کار اخستل په زړه پورې اغیزمن تماميږي . دا ځکه چې تجربه د نظر او عمل تر منځ رابطه او اړيکې ټینګوي او حقائق شاګردانو ته عملاً تمثیلیږي .

د تجربې زده کړې په جریان کښې د شاګردانو ذهني قوه او حسي قواوې په ګډه د موضوع په زده کړه کښې برخه اخلی ، طبعًا کومه زده کړه چې په دې شکل تر لاسه کیږي ، هغه به دائمي زده کړه وی ، دا ځکه چې تقریر ، مشاهده او عمل په اورګانیک ډول د مطالبو په حپلولو کښې مشترګا عمل کوي .

د تجربي اصولو[1] څخه د ښه استفادې لپاره یو مخصوص محل او ځائ ته ضرورت دی کوم چې د لابراتوار ( Laboratory ) یا دارالتجزیې په نوم یادیږی .

په لابراتوار کښې د تجربوي عملیاتو او مشاهداتو لپاره لازم او ضروري مواد ، وسایل او ادوات د استفادې لپاره موجود او اماده وی مثلاً د کیمیاوي عناصرو نمونې ، تیزابونه ، القلی ، ګازات ، فزیکی وسائل او نور .

د لابراتوار حجم او نوعیت د ښوونځي او یا تعلیمی موسسې لوړ والی او کوچني والي پورې اړه لري ، د ټولنې فرهنګی اجتماعی او اقتصادي وضع هم د لابراتوارونو او مطالعاتي مراکزو په تاسیس او تدوین کښې مهم رول لري ، په صنعتي او پرمخ تللو هیوادونو کښې د ښوونې او روزنې په چوکات کښې په میلونونو پولی اسعار په همدې لاره مصرفیږي .

په تجربي او لابراتواري کارونو کښې طبعًا د کیمیاوی موادو ، تخنیکي او برقي وسایلو څخه استفاده کیږي ، د دې لپاره چې له یوې خوا د ځاني خطراتو څخه او له بلې خوا د اقتصادي زیان څخه بچ پاتې شو باید د تجربې او لابرتواری کارونو په

---

(۱) راه نو در تعلیم و تربیت . نګارش حسین کاظم زاده ایرانشهری - ص ( ۱۶۹ - ۱۷۰ )

په اجراء کښې ډېر محتاط اوسو.

معمولاً تجربوي او لابراتواري کارونه په مربوطه مضامينو کښې د نظري درسونو د استحکام او عملي ثبوت لپاره پکار وړل کېږي، د تجربې او لابراتواري کارونو پلانګذاري، تطبيق او اجرائت، د ښوونکي مهارت او د درسي موضوع خصوصيت پورې اړه لري، ليکن بيا هم د تجربې فعاليتونو لپاره د لاندينيو شرائطو په نظر کښې نيول لازمي ګڼل کېږي...

۱ - عملي او تجربې فعاليت لپاره د آمادګۍ شرائط.

۲ - د عملي او تجربې فعاليت د اجراء کولو شرائط چې عبارت دي له:

الف :- د يو منظم پلان له مخې د تجربوي فعاليتونو عملي کول.

ب :- د ذهني او جسمي توانائي مطابق شاګردانو ته برخه ورکول.

ج :- د تجربوي او لابراتواري کارونو يادداشت او د نتايجو تعميم.

د :- د تجربوي فعاليتونو د ختم څخه وروسته د تجربې وسايل او مواد بايد په ډېر احتياط او امانت داري سره خپل اصلي منبع کښې په مکمل ډول ځائ په ځائ شي.

## ۳ :- عملي کارونه :

عملي کارونه اکثراً د لومړنيو ښوونځيو په پروګرامونو کښې عموميت لري، معمولاً د عملي کارونو اساسي مطلب شاګرد ته د عملي زده کړې ورکول دي تر څو ژوند او اجتماعي امورو په اړوند مسائلو کښې د پروبلمونو او مشکلاتو په حل او فصل کښې فعاله ونډه واخلي.

د عملي کارونو په سرته رسولو کښې نظري زده کړه استحکام او ثبات مومي، شاګردانو ته د هغوئ د فطري او طبيعي غوښتني مطابق د کار او فعاليت زمينه مساعده او ضمناً په درسي پروګرام کښې د زده کوونکو په کټه تنوع پيدا کېږي.

دعملي کارونو په سرته رسولو کښې تر ټولو مؤثر عامل[1] دعملي کارونو تنظیم او سازمان ورکول دی. دعملي کارونو سازماندهي د درسي موضوع او درسي ممدو موادو نوعیت او کمیت سره نژدې رابطه لري. دعملي کارونو مروج ډولونه په مکاتبو کښې عبارت دی له :

a - انفرادي عملي کارونه .
b - ګروپي عملي کارونه .
c - دسته جمعي عملي کارونه .

ⓐ - انفرادي عملي کارونه :- دانفرادي عملي کارونو څخه مطلب درس پورې مربوط هغه فعالیت دی کوم چې په هر یو شاګرد باندې په مستقلانه ډول عملي کېږي مثلاً د دریم صنف د حساب په مضمون کښې د چوټ په عملي زده کړه کښې هر شاګرد باندې په انفرادي ډول عملاً کار کېږي ترڅو شاګردان په عملي ډول کښې د چوټ څخه د حسابي مسائلو په حل او فصل کښې استفاده وکړای شي ، یا په دریم صنف کښې د دینیات شریف په مضمون کښې د تیمم په عملي طریقه کښې ښوونکي د دوسته له دې نه چې پخپله د تیمم عملي طریقه اجراء کړي بیا عین عملیه په منفردانه ډول په ټولو شاګردانو باندې اجراء کوي ترڅو د تیمم په عملي اجراء باندې شاګردان مؤفق شي .

ⓑ - ګروپي عملي کارونه : په درسي پروګرامونو کښې ګروپي عملي کارونه ډېر اهمیت لری دا ځکه چې ښوونکی کولائ شي د شاګردانو د ذهني او جسمي توانایئ په نظر کښې نیولو سره د ټولګی د زده کوونکو څخه مشابه ګروپونه جوړ کړی او هر ګروپ ته جلا عملي کار وسپاري او د ګروپ غړي په مشترک

---

(۱) تدریس بهتر جغرافیه - مؤلف و مترجم - ګل احمد - سال چاپ (۱۳۷۰) هش ص (۲۳)

مسئولیت سره عملي کار کښې برخه واخلي.

د شاگردانو طبقه بندي د هغوئ د نسبي توانایئ او استعداد له مخې د گروپ بندئ په نوم یا دیږي . د گروپ بندئ یوازینی مطلب د شاگردانو په منځ کښې یو د بل لپاره همکار جوړول دی چې د شرائطو په اماده کولو سره یو د بل په مرسته په عملي زده کړه لاس پورې کړي.

په گروپ کښې د هرغړي نظر او عمل باید د احترام وړ وي او هرغړی باید د موضوع په هکله احساس د مسئولیت وکړی د ضرورت په وخت کښې د گروپ په رأس کښې د شاگردانو څخه مسئول غړي ټاکل کېږي او گروپونه په پوره شوق او علاقې سره په عملی کار شروع کوي ، د صنف شاگردان په مختلف تعداد گروپ بندی کېدای شي، مگر باید کوشش وکړو چې د گروپونو تعداد د ( 6 - 3 ) څخه تجاوز ونه کړی ، په صنف کښې د شاگردانو فزیکي او تربیتی تنظیم او د گروپونو نظم او نسق د ښوونکي مهارت او رهنمائي پورې اړه لري.

د گروپي عملی کارونو یو ښه مثال کولای شو د څلورم صنف د هندسې په مضمون کښې ورکړو مثلاً د هندسې ښوونکی د هندسي اشکالو د جوړولو لپاره خپل شاگردان په مناسبو گروپونو تقسیموي او هر گروپ ته د درسي ممدو موادو ( لکه کاغذ، پنسل ، بیاتي ، خط کش ، سریښ او نورو ) په موجودیت سره د هندسي شکلونو لکه مربع ، مستطیل ، مکعب او نورو د جوړولو لپاره عملي کار ورکوي ، شاگردان په پوره همکاری او د ښوونکی تر رهنمائی په عملی کار شروع کوي.

ⓒ . **دسته جمعی عملي کارونه :** په دسته جمعی عملی کارونو کښې معمولاً یو واحد کار د ښوونکی له خوا د صنف ټولو شاگردانو لپاره ورکول کېږي، شاگردان په گډه د پروبلم د حل لپاره اقدام کوی ، یا داچې یو واحد عملي کار

په یو وخت کښې د ښوونکي تر رهنمایۍ د ټولو شاګردانو له خوا اجراء کیږي مثلاً د دریم صنف د سپورټ ښوونکي په خپل درسي ساعت کښې یو واحد عملي او تمریني حرکات په ټولو شاګردانو باندې اجراء کوي ، یا د رسم په مضمون کښې د رسم ښوونکي په خپل درسي ساعت کښې دیو نوع ګل رسمول په صنف کښې ، په ټولو شاګردانو باند په یو وخت عملي کوي .

په عمومي توګه په عملي کارونو کښې ښوونکي شاګردانو سره په تماس کښې وي ، د شاګردانو مثبت او منفي نقاط یادداشت او د ضرورت مطابق د شاګردانو توجه ورته راګرځوي ، د عملي کارونو نتیجه ګیري لازمي او اصلاحي مداخلت د ښوونکي له خوا حتمي دي .

د عملي کارونو د اجراء نو وخت او نوعیت د ښوونکي او شاګردانو اماده ګۍ او د درس نوعیت پورې اړه لري .

که څه هم د عملي کارونو په سرته رسولو کښې ځینې مشکلات ممکن موجود وي مګر په مجموع کښې د عملي کارونو ګټې زیات او د شاګردانو ، راتلونکي او مستقبل لپاره حیاتي ارزښت لري .

## ۴ - د پروژې میتود

د ( ۱۹ ) پیړۍ د تحولاتو څخه ، کوم چې د زده کړې[۱] په پروګرامونو کښې رامنځته ته شو یو هم دا وو چې شاګردان د کور ، محیط ، مکتب او نورو اجتماعي او فرهنګي کارونو کښې عملاً برخه واخلي ترڅو ما شو مان د راتلونکي نسل د مسئولینو په توګه مبتکر ، فعال او د ټولنې اکتیف غړي وي ، د دې سترهدف

---

(۱) تعلیم وتربیت جهانی درقرن بیستم . جمه‌ .سن الله صفوی . چاپ (۱۳۶۲) هش . ص (۵۳-۵۷)

د لاسته راوړلو لپاره په تعلیم اوتربیه کې د عملي فعالیتونو په ردیف کښې د پروژې اصول د لوړ او مهم موقف څخه برخه مند دی.

پروژه په حقیقت کښې د مسئلې طرحه او د مسئلې او یا د پروبلم عملی حل ته وائي، د پروژې په مېتود کښې د مسئلې طرحه او پیشنهاد، د مسئلې تحلیل، تجزیه، ترکیب او تعمیم ټا کونکی اهمیت لري چې باید د ښوونکي له خوا په نظر کښې ونیول شي.

د ښوونې او روزنې په تاریخي مسیر کښې د پروژې مفکوره د امریکایي فیلسوف جان ډیوی ( J . Deviey ) له خوا چې د ( 1952 - 1859 ) م کلونو په شاوخوا ژوند کاوه رامنځته شو، جان ډیوی په دې عقیده ؤ چې تجربه په حقیقت کښې زده کړه ده. په دې اساس علم او معرفت، عمل او فعالیت سره نه شلېدونکې رابطه لري. د دې هدف د عملی تطبیق لپاره جان ډیوی په ( 1896 ) م کال کښې د شیکاګو په ښار کښې یو تجربوي مکتب د ( Thelab School ) په نوم تاسیس کړ، جان ډیوی په دې باندی ټینګار کاؤ چې ماشومان په داسې یو ماحول کښې تربیت لاندی ونیول شي چې هلته د شاګردانو ترمنځ د همکارئ او اجتماعي روابطو اړیکې په مقابل ډول موجود وی، په حقیقت کښې د جان ډیوی روش او اصول په عمل او فعالیت استوار وو، د جان ډیوی په تجربوي مکتب کښې، حتی د زده کړې اساسي مهارتونه لکه لوستل، لیکل او نور د ماشومانو د طبیعي او ذاتی فعالیتونو څخه سرچینه آخستل.

د جان ډیوی نظر د ښوونې او روزنې د نورو متخصصینو له خوا، تعقیب او د زده کړې په فعالیتونو کښې عمومیت پیدا کړ، په ابتداء کښې د پروژې روش هغو عملی فعالیتونو پورې منحصر ؤ کوم چې په محیط او چاپېریال کښې رواج درلود لکه مرغ داری، جنګل دارئ، جامې ګنډل، نجاری او کور پورې مربوط څینې

نوي کاروته .

ویلیام کیلپاتریک (1950 - 1865 م) دهغو دانشمندانو څخه دی کوم چي د فرانسیس پارکر (1902 - 1837 م) او دجان دیوی او نورو دافکارو د مجموعې څخه د پروژې روش ته يې واقعي رنګ ورکړو او دتعلیم او تربیې په چوکاټ کښې د زده کړې دښه والی لپاره دڅلورو ډولو پروژه یي فعالیتونو پیشنهاد کړی چي عبارت دي له :

1 - ابتکاري پروژې: لکه دځینې درسي ممدو موادو جوړول په نوی شکل او دبزاین سره مقاله نویسي ، د شعر او شاعری مسابقات نمائش نامې او داسي نور.

2 - هنري پروژې: چې دهنري فعالیتونو لپاره سازمان ورکول کیږي لکه خیاطي ،نقاشی ، رسامی او نور.

3 - تمریني پروژې :- دتمریني پروژو اصلي هدف دځینو مهارتونو زده کړه وي لکه د ریاضی په مضمون کښی دعدد نویسۍ ، دحساب دڅلور ګوني عملې د زده کړې پروژې او نور.

4 - دمسئلې یا پروبلم دحل پروژه :- د مسئلې یا پروبلم د حل د پروژې هدف د مسئلې عملي حل وي د مثال په ډول غواړو د امسئله حل کړو چې ( په څینو ځایونو کښې ولې باران زیات او په ځینو ځایونو کښې کم اوري ؟ ) .

د پروژې تکمیلول دموضوع نوعیت او ثقلت پورې اړه لري ، په دې مفهوم چې ځینې پروژه يي فعالیتونه اکثراً د محیطي منابعو په مرسته تکمیلیږي ، همدارنګه په پروژه يي فعالیتونو کښې د کار تقسیم د شاګردانو د ذهني

---

(۱) تعلیم و تربیت جهانی درقرن بیستم . ترجمه امان الله صفوی . ص (۷۰ - ۷۲)

قابلیتونو اوعلایقو مطابق صورت نیسي .

دپروژې په سرته رسولوکښې څو لاندیني ذکرشوي مواد لازم[۱] اوضروري ګڼل کېږي.

a - دپروژې هدف .

b - د کار پلانګذاري .

c - کومکي مواد -

d - دپروژی توحید اونتیجه‌ګیري .

دپروژې په عملی تطبیق کښې شاګردانو لپاره ګټورنقاط عبارت دي له :

الف :- نظري زده کړه په عملي اودایمي زده کړه بدلېږي.

ب :- شاګردان په اجتماعي ژوندکښې د مشکلاتو په مقابل‌کښې د مقابلې توان پید اکوي.

ج :- د شاګرد ابتکاري قوه وده کوي.

د پروژې په تطبیقي‌جریان کښې ممکن ځینی مشکلات اونواقص هم موجود وي ، چې دګټو په مقایسه ناچیزه وی.

مثال :- د ( ... ) د جغرافیې استاذ د جلال آباد د زیتون دغوړیو د اقتصادي نقش په هکله یوه پروژه وزکوي ، طبعًا د دی پروژې په تکمیلولو کښې ټول شاګردان باید عملًا برخه واخلي.

---

(۱) د افغانستان د تعلیم او تربیې اداره- د ښوونکو تربیوی سمینار- سویدن‌کمیټه چاپ (۱۳۷۰) ه ش ص ( ۶۹ )

مثلاً :

۱ - د زیتون د غوړیو د فابریکې موقعیت او تاریخچه.

۲ - د زیتون د اومه موادو فارم او دهغه موقعیت.

۳ - د زیتون د غوړیو د فابریکې اداري او فنی پرسونل.

۴ - د زیتون د غوړیو د خرڅلاؤ بازار.

۵ - ترانسپورت.

۶ - قیمت او د تولید شویو غوړیو کلني عایدات.

په همدې شکل نور ضروري حقایق باید په نظر کښې و نیول شي. د پروژې د تکمیل دا پور ټول شاګردان د ښوونکی په حضور آوری، ښونکي پروژه توحید او عمومي نتیجه ګیري ورڅخه کوي.

## درس اوتدریس (Lesson and Teaching)

دا یو مسلم حقیقت دی چې زده کړه د انسانی افرادو لپاره یو مداوم او استمراری امردی. نبوی (ص) ارشاد دی « اطلبوا العلم من المهد الی اللحد ».[۱]
زده کړه د ماشوم د عمر مطابق، د وړکتون څخه څکښې دوره، د وړکتون دوره، د ابتدائیې دورې زده کړه، متوسطه، ثانوی ..... او نورو باندې ویشل کیږی.

زده کړه د فورم او شکل له مخې په دوو اساسی برخو ویشل کیږی چې عبارت دی له رسمي او غیر رسمی زده کړې څخه (Formal and Informal Edu).

د رسمي زده کړې څخه مطلب هغه منظم او منطقي زده کړه ده کوم چې د یو قانون او چوکاټ لاندې بنا شوی وی، یا په بل عبارت رسمي زده کړه د یو پلان شوې زده کړې څخه عبارت ده چې په صنفی ډول د یو تعداد مشخصو شاګردانو دهنمائی په مکتب کښې په برکښې نیسي نه خارج د مکتب څخه.

د درس او تدریس صنفی نظام دخپل مؤثریت له کبله د ښوونې او روزنې په چوکاټ کښې عمومیت پیدا کړی دی. په صنف کښې د درسی سیستم عمده خصوصیات عبارت دي له؛

(۱) - د مشابه او همسنو شاګردانو یو معین (مثلاً په اوسط ډول 20 نفر) تعداد.

(۲) - یو معین او ټاکلی ځای کوم چې شاګردان په کښې روزمره جمع شی.

(۳) - یو منظم تقسیم اوقات، کوم چې د مضامینو روزمره درسي ساعتونه په کښې تعیین شوی وي.

---

(۱) آموزش وپرورش - داکتر ابو الفضل عزتی - چاپ (۱۳۵۶) هش ۴ (۱۱۲ - ۱۱۵)

# څلورم فصل پورې مربوط ترتیب کړی شوی چارت



# تمرين

۱- د تدريس په عملي مېتود ونوکښې په عمومي ډول کوم خصوصيات بايد په نظر کښې ونيول شي؟

۲- د مشق او تمرين مېتود په کوموموضوعاتوکښې عموميت لري؟ مشق او تمرين د شاګردانو په علمي پانګه کښې څه اهميت لري؟ مثال سره ئې توضيح کړئ؟

۳- د تجربې څخه مطلب څه دی؟ د تجربې د مېتود څخه اکثراً په کومومضامينو کښې استفاده بايد وشي؟ ددې مېتود په تطبيق کښې بايد د کومو وسائلو څخه کار واخستل شی؟

۴- عملي کارونه د زده کړې په کومه دوره کښې عموميت لري؟ د عملي کارونو سازماندهی بايد څرنګه وشی؟ د ګروپي عملی کارونو ګټه څه ده؟ د يو مثال په مرسته ئې توضيح کړئ؟

۵- د پروژې مفکوره د چا له خوا او څه وخت منځته راغلې ده؟ ويليام کيلپاتريک د زده کړې د ښه والی لپاره او د شاګردانو د فعالولو په منظور د څو ډولو پروژه ئې کارونو پيشنهاد کړی دی؟

۶- که چېرې د جغرافيې په مضمون کښې د درس موضوع د ننګرهار په ولايت کښې د مالتو پيداوار وی، شاګردانو ته بايد څرنګه پروژه ورکړشي؟ د کار پلان ئې بايد څرنګه عملی شی؟

# پنځم فصل

## دعيني ( بصري ) تدريس مېتود

طبيعتاً زمونږ د ژوند محيط او ماحول د مختلفو مادي منابعو او عواملو څخه تشكيل موندلای دی چې اكثراً زمونږ توجه جلبوي كله كله داسې پېښېږي چې محيطي حقايق په علمي توګه بايد وڅېړل شي لكه غرونه ، معدنيات ، ځنګلات ، سيندونه ، تاريخي آثار او آبدات ، فرهنګي موسسات ، توليدي مراكز او نور .

ددې حقائقو تحليل او تفهيم اكثر اوقات په عيني توګه صورت نيسي ، كوم تدريسي طريقه چې په عيني كړنلاره استوار وي د بصري تدريسي مېتود په نوم يادېږي .

د بصري تدريسي مېتود څخه د جغرافيې ، بيولوژي ، طبيعت شناسۍ ، كيميا او فزيك كښې عموماً كار آخستل كېږي او پر دوو مهمو څانګو تقسيمېږي چې عبارت دي له :.

۱ - د مشاهدې مېتود .

۲ - د نمائش مېتود .

### ۱ - د مشاهدې مېتود :

د مشاهدې مېتود ، په درسی چارو كښې اكثراً د طبيعت شناسۍ ، جغرافيه او بيولوژي په مضامينو كښې د تطبيق وړ دي .

د مشاهدې څخه مطلب د حقايقو بررسي ، ليدنه او كتنه ده ،[1] كوم چې پر عيني

---

( ۱ ) فرهنګ علوم رفتاری تاليف علی اكبر شعاری نژاد ص ( ۲۷۸ )

او مستقیم ډول د فرد له خوا صورت نیسي یا په بل عبارت د مشاهدې میتود د هغه فن او طریقې څخه عبارت دی چې په هغې کښې حقایق او واقعیتونه په عیني ډول څېړل کېږي.

د مشاهدې د میتود څخه د تدریسي عملي زده کړې څخه علاوه، د نورو علمي څانګو په تحقیقي چارو کښې هم په پراخه پیمانه د ... استفاده کېږي.

د ښوونې او روزنې په درسي پروګرامونو کښې مشهوداتو او محسوساتو ته د شاګردانو د واقعي زده کړې په منظور خاص ارزښت ورکړ شوی دی، داځکه چې د حقایقو عینیت د زده کړې د اهدافو په انتقال کښې پوره اهمیت لري.

د مشاهدې د میتود څخه د ابتدائیې دورې د شاګردانو لپاره د ډېرو ساده طبیعي منابعو او موادو څخه استفاده کېدای شي مثلاً د مکتب په دننه کښې او یا د مکتب څخه د باندې نږدې محیطي منابعو لکه چمن، باغ، باغچه او نورو طبیعي عواملو مشاهده، مګر په لوړو صنفونو کښې د دې میتود د تطبیق لپاره د پوره مجهزو تخنیکي وسایلو څخه استفاده کېږي.

مثال د (شپږم) صنف د بیولوژي ښوونکی غواړي د یو مشیمه ئي او دوه مشیمه ئي نباتاتو په هکله شاګردانو ته معلومات وړاندې کړي، د دې لپاره چې موضوع په عیني ډول شاګردانو ته تفهیم شي، ښوونکي د مکتب په نږدې ماحول کښې د یو مشیمه ئي او دوه مشیمه (مثلاً غنم او کدو) نباتاتو کرل شوی ځائې ته شاګردانو سره ځي، او موضوع په بالمشاهده ډول څېړي، یا هغه ګلدان چې په هغې کښې د یو مشیمه ئي او دوه مشیمه ئي نباتاتو نمونې کرل شوی وی، د شاګردانو حضور ته په صنف کښې راوړی تر څو شاګردان د نظري او عیني واقعیتونو په مرسته موضوع درک کړي.

د ذره بیني آلاتو په مرسته د نباتاتو حجرات او همدارنګه د ذره بیني

حیوانا تو لیدنه او دهغوئ په هکله عینی معلومات حاصلول هم دمشاهدې دمېتود په مرسته امکان پذیردی.

د تاریخی اثارو عینی مطالعه لکه ملی ارشیف، موزیم او نورو تاریخی مراکزو کښې په خپل وارسره دمشاهدې دمېتود د مثالونو ځنې شمېرل کېږي.

دمشاهدی دمېتود په تطبیق کښې څو لاندینیو ټکونه باید دقت وشي.

۱- دمشاهدې د اهدافو ټاکل.

۲- دمشاهدی لپاره منظم پلان.

۳- دمشاهدې دمطالبو خلاصه، نتیجه گیری او تعمیم.

## ۲- دنمایش مېتود :

د بصری تدریسي مېتودونو په ردیف کښې یو هم دنمایش مېتود دی، د نمایش تدریسي مېتود ځنې مطلب هغه درسي طریقه ده، کوم چې په هغه کښې د حقایقو انعکاس د تعلیمی فلمونو پروجکتورونو، تمثیلی پارچو او طبیعي درسی ممدو موادو په کومک سره صورت نیسي.

اکثراً داسې پیښېږي چې ښوونکی د درس په جریان کښې یا د نظری درس ځنې وروسته د مطالبو وضاحت او تحکیم لپاره ځینی نمایشی موادو ځنې استفاده کوی مثلاً د پنځم صنف د فزیک استاذ د مقناطیس ( Magnet ) دموضوع په درسي جریان کښې د موضوع د وضاحت لپاره (کوم چې دمقناطیس دجذب او دفع خاصیت، دمثبت او منفی قطبونو تشخیص او نوعیت دی) . دمقناطیس یوه میله او د اوسپنې ذرات دجذب او دفع په حال شاگردانو ته ښیئ ترڅو شاگردان په دې پوه شي چې مقناطیس په ریښتیانی ډول دجذب او دفعې خاصیت لري.

یا دجغرافیې استاد دځمکې د وضعی حرکت د درسي موضوع ، د درس په جریان کښې د شاګردانو د پوهولو لپاره د ځمکې د کرې د مودل تخته کاراخلی په داسی شکل چې د شاګردانو د توجه دجلبولو تخته وروسته دځمکې د کرې مودل را اخلی او د زده کوونکو په مخکښې په داسی ډول د محور په شاوخوا ورته حرکت ورکوی، چې د ځمکی وضعی حرکت پکښې تمثیل شی .

د نمایشی میتود تخته غالباً د درسی موضوع د تفهیم او درک په منظور استفاده کیږي ترڅو دمطلوبو او اماده کړای شوی درسی کومکي موادو په مرسته درسي مطالب شاګردانو ته انتقال شي .

په کوموښوونځیو او تعلیمی موسساتو کښې چې د نمائش وړ درسی ممد مواد لکه مودلونه ، نقشې ، هندسي اشکال ، فزیکی او کیمیاوی مواد ، تخنیکی وسائل او نور محیطی مواد موجود وی ددې میتود تخته لازمه استفاده کېدای شی .

ددې میتود په تطبیق کښې لاندی مواد باید په نظر کښې ونیول شي .

۱ - د موضوع په هکله پوښتنې باید وشی ، ترڅو شاګردان په پوره غور او دقت سره نمائش ته ځیر شی .

۲ - نمائش باید ټولو شاګردانو ته د لیدلو وړ وی .

۳ - نمایش باید د ښوونکی له خوا په صنف کښې په پوره دقت او کنترول سره عملي شی .

---

(۱) دتدریس عمومی اصول - لیکوونکی شاولی "عطائی" - کال (۱۳۶۸) هش - م (۱۵)

# د پنځم فصل پورې مربوط ترتیب کړی شوی چارټ



# تمرین

۱- دمشاهدې د مېتود څخه په کومو مضامینوکښې بایدکاروشی ؟

۲ - د مشاهدې په مېتود کښې بایدکومو مهموټکو ته توجه ولرو؟

۳ - د نمایش د مېتود عمده خصوصیات کوم دي؟

۴ - د نمایش په مېتود کښې درسی ممد مواد څه رول لری ؟دمثال په راوړلو سره یې توضیح کړئ ؟

# شپږم فصل

## دمېتودونو په تطبيق کښې د پرنسيپ رعايت

معمولاً دهرعملی اقدام مؤثريت دکار معقوليت او موزونيت سره مستقيماً رابطه لري په هره اندازه چې دفعاليت سازماندهی او دوسايلو څخه داستفادې طريقه د تعقل اوتدبر په اساس بنا موندلای وی دمؤفقيت چانس بر پکښې زيات وي.

دپرنسيپ اصطلاح د ( پرنسی پی اوم ) څخه مشتق اومعنی ئې ابتداء او اساس کيدلای شي اوپه تعليم اوتربيه کښې دپرنسيپ څخه مطلب هغه قواعد اودزده کړې اساسات دی، کوم چې د تعليم اوتربيې عمومې نظرې اوعملی جويان پرهغوباندې بنا موندلای وی.

دتدريسی مېتودونو په تطبيقی کړنلاره کښې د پرنسيپ رعايت د زده کړې جريان آسان اودزده کوونکو لپاره دعلاقې ورکرځوي. طبعًا دښوونکی سلوک او کردار د زده کړې اودرسي اهدافو په انتقال او د زده کوونکود شخصيت پروده باندې مهم رول لوبوی، چې بايد ښوونکی داخلاقی صفاتو نمونه اود تقوی او امانتداری ممثل وي.

دمېتودونو په تطبيق کښې ښوونکي بايد لاندينيو موادوته دقت اوپاملرنه وکړي :-

۱- د شاګردانوعمر اوصنفي موقف، طبعًا دابتدائيې دورې دشاګردانو لپاره چې دعمر اوصنفي موقف له نظره په ټيټه سطح واقع دی، دهغومېتودونو

---

(۱) تيوری های آموزش - وزارت تعليم وتربيه - سال چاپ (۱۳۶۶) هش - ۳ (۱۲۱)

تخه باید کار واخستل شی چې په هغوکښې اکثراً شاګرد محور دکار وی مثلاً د سوال وجواب (صحبت) مېتود، دمناقشې مېتود، دقصې مېتود او نور.

۲- د شاګردانو فردي اختلافات باید په نظر کښې ونیول شي، معمولاً د یو صنف شاګردان د جسمي توانایۍ، استعداد او علاقې له حېثه یوشان نه وی. بلکه د مختلفو او متفاوتو ذهني او نما یلاتی تفاوتونو لرونکی وی، ددی تفاوتونو د توازن اوجبران لپاره پرنسیب دادی چې ښوونکی د مختلفو درسی ممدو موادو او مختلفودرسي مېتودونو تخه کار واخلی مثلاً مشاهده، نمائش، صحبت او ګروپي او انفرادي عملي کارونه.

۳- د مېتودونو په عملی تطبیق کښې د مضمون نوعیت هم اهمیت لری، په دی مفهوم چې د مضمون دخصوصیت اوغوښتنې مطابق باید مېتود انتخاب شي مثلاً دریاضي په مضمون کښې پروژه، په سایس کښې تجربه او لابراتوار، د ژبې په زده کړه کښې قرائت، سوال اوجواب اومناقشه مؤثر تما مېږي.

۴- هر نوې درس د مختلفو مېتودونو تخه د استفادې ضرورت لري، په دی مفهوم چې ښوونکی باید د یو مېتود تخه یوازې استفاده ونه کړی او د درس د اهدافو اومراحلو په نظرکښې نیولو سره خپل مېتودیکی طرزالعمل ته تغیر ورکړي اوندریس په مختلفو مراحلوکښې د ضرورت مطابق مختلفو مېتودونو تخه کار واخلی.

۵- هرنوی درس اوهرمېتود دعمل په ډګرکښې په پراخه پیمانه سمعی او بصری وسایل یا په بل عبارت درسی ممدو موادو ته ضرورت لری، [1]

---

(۱) دتدریس عمومی اصول. لیکونکی شاه ولی «عطائی» چاپ (۱۳۶۸) هش-۳ (۵۴-۵۶)

(۴) - معیین او ټاکلی وخت ، کوم چې د ښوونکی او شاګردانو لپاره دمکلفیت له لحاظه قابل درعایت وی ( مثلاً 40 دقیقو لپاره ) .

که چیری د درسی فعالیتونو ترکیبي اجزاوې په صحیح، مناسب[۱] اومعقول ډول تنظیم شی په هغه صورت کښې د زده کړې لپاره مؤثر او ښه شرایط مساعدیږی . د درس تنظیم شوې ټک لاره باید د ټولنې د فرهنګي ، تعلیمي ، تربیتي، تاریخي او ملي اهدافو قضایاؤ او شرایطو سره پوره رابطه او پیوستون ولری . په تنظیم شوی درس کښې ښوونکی د یو تعداد معینو شاګردانو سره د یو منظم تقسیم اوقات له مخې یو تثبیت شوی وخت لپاره په ټولګي کښې د تدریس مسئولیت ترسره کوی .

درس په واقع کښې د زده کړې د یو معین وخت او تنظیم شوي فعالیت څخه عبارت دی چې د یوې مشخصې موضوع مهارت ، ذهنی او فکری عمل لپاره اختصاص موندلای وی .

تدریس د زده کړې د هغه تنظیم شوی فعالیت څخه عبارت دی ، چې ښوونکی یو مشخصه موضوع ، په یو معین وخت ، یو تعداد معین او مشابه شاګردانو لپاره تفهیم کړی یا په بل عبارت تدریس د هغو شرایطو او اوضاعو اماده کول دی کوم چې زده کړه زده کوونکو او شاګردانو لپاره آسانوی .

صنف یا کلاس ( Class ) په حقیقت کښې د یو معلم او د یو تعداد مشابهو[۲] شاګردانو د تشکیل شوې مجموعې څخه عبارت دی . طبعًا صنفی تدریس د یو منظم پلان او تقسیم اوقات له مخې په رسمي ډول امکان پذیر وی .

په رسمي او د زده کړې په صنفي نظام کښې د اصول صنفي او اصول مضموني

---

(۱) تیوری های آموزش - وزارت تعلیم و تربیه سال (۱۳۶۶) هـ ش ص (۱۴۰ - ۱۴۳)

(۲) جامعه شناسی تعلیم وتربیت - ترجمه ناهید (فخرائی) - سال (۱۳۵۷) هـ ش ص (۱۷۶) .

د ضرورت مطابق درسي ممد مواد د محیط او ماحول څخه په طبیعي او ساده ډول او همدارنګه د تخنیکي او پېشرفته وسایلو په ډول اماده کېدلای شي.

٦ - د زده کړې اهداف، داهداف د لاس ته راوړلو لپاره د زده کړې د قوانینو او قواعدو سره آشنائي د اهمو موضوعاتو څخه دی، کوم چې د ټولنې دکلتوري او ثقافتي ارزښتونو په نظر کښې نیولو سره د مېتودونو په تطبیق کښې پوره نقش لری.

٧ - د ښوونکی بیان او ادبي متقابله رابطه کوم چې شاګردانو سره ئې لری باید د مېتودونو په تطبیق کښې له نظره ونه غورځول شی، په دې مفهوم چې دشاګردانو د سویې او علمی او صنفی موقف مطابق ادبیاتو څخه کار واخستل شی، ساده او عام فهمه الفاظ او کلمات مطالب په آسانه شاګردانو ته انتقالولای شی نسبت پېچلی او شاعرانه جملاتو ته.

٨ - د مېتودونو په تطبیق کښې ښوونکي لپاره د یو منظم درسی پلان لرل ډېر اهمیت لری، ترڅو د درس په جریان کښې، درسي اهداف په منظم او مسلسل ډول انتقال شی.

د شاګردانو د درسی فعالیتونو کنترول، هدایت او رهنمائي او دنوی درس ارزیابي د هغه فکتورونو څخه دي چې په حقیقت کښې زده کوونکی او ښوونکی خپلو مسئولیتونو ته متوجه کوي، ښوونکی باید په دې معتقد وی، چې د ده اخلاق، سلوك او کردار دشاګردانو په تربیتي وده مؤثر او د توجه وړ دي.

د پورتنیو موادو په نظر کښې نیولو سره باید وویل شی چې هرمېتود په هر وخت او هره درسي موضوع کښې مؤثر نه بلکه هرمېتود باید د خپل خاصیت مطابق استعمال شي. د مضمون نوعیت، دشاګردانو موقف، فردی اختلافات د درسي موضوع ضرورت او د ښوونکی مېتودیکي صلاحیتونه د مېتودونو په

انتخاب کښې مهم نقش لری نو ځکه ویلای شو، تر ټولو ښه او بهترین مېتود هغه تدریسي مېتود دی کوم چې درسی اهداف په آسانه او صحیح ډول انتقالولای شي.

## دیو پلان شوي درس ساده مثال:

معمولاً د درس د پلانګذارۍ څخه مطلب، د درس د موضوع او محتواء او د درسي ساعت د وخت او مراحلو ترمنځ رابطه، توازن او تناسب دی کوم چې د درسي اهدافو په نظر کښې نیولو سره باید تقسیمبندی شی.

د درس په پلانګذارۍ کښې د درس موضوع او عنوان. اهداف، نتیجه ګیري او ارزیابي، درسي ممد مواد، درسي مېتودونه او طریقې او څنې نور نظري او عملي فعالیتونه لازمي ګڼل کېږي چې مجموعًا هغه فعالیتونه پکښې شاملېږي کوم چې د درسي ساعت د شروع څخه تر پایه پورې د ښوونکي او شاګردانو ترمنځ د درسي موضوع په هکله صورت نیسي.

د درس په جریان کښې د درسی مراحلو تسلسل قابل درعایت دی، تر څو د درس اهداف او غوښتنې یو پر بل پسې په منظم ډول ترلاسه شي.

مثال :- غواړو د دوهم صنف شاګردانو ته د (جمع) موضوع تدریس کړو، د جمعی د موضوع د تدریس لپاره د مقدماتی امادګی په توګه باید د ټولونه مخکښی درسی پلان ترتیب شي، د درسی پلان په ترتیب او تنظیم کښی طبعًا د درسي پلان، ښوونځی، صنف، مضمون، موضوع، عنوان، نېټه، د درس اهداف، د درس مراحل، وخت، مېتود او وسایل په نظر کښې ونیول شي.

څنګه چې شاګردان د دوهم صنف په سویه د جمعې د موضوع سره نوی آشنا کېږي نو د درس خصوصی هدف به داوي چې دوئ ته د جمعې موضوع تفهیم

شي . ددې هدف د لاسته راوړلو لپاره کوشش باید وشي چې د اصول مطابق دساده محیطي مثالونو څخه کار واخلو او په آخرین تحلیل کښې خپل مطلب یعنې د جمعې تعریف شاګردانو ته ددوئ د استعداد مطابق توضیح او تفهیم کړو مثلاً په لومړي قدم کښې څو همجنس او مجسم شیان ددوئ په مخکښې یوځائ کوو اودې عمل ته د جمعې نوم ورکوو . بیا د تصاویرو او ترتیب کړی شوی چارت په مرسته کوم چې د همجنسو تصویرونو د جمع کېدو څخه نمایندګی کوی خپل مطلب شاګردانو ته انتقالوو او په آخر کښې د جمعې تعریف په مجرد ډول وړاندې کوو ( د څو همجنسو شیانو یوځائ کولو ته جمع وائی ) او علامه ئې د حساب په علم کښې دا ( + ) ده .

که پورتني مطالب په منظم ډول د یو کاغذ پرمخ تنظیم او دیو پیشبیني کړی شوی طرحې په توګه ځان سره ولرو نو ددرسي پلان په نوم یادېږي . دا پلان په مختلفو ډولونو مثلاً په دوو صفحو او یا یوه صفحه جوړېدائ شي . دکار د آسانتیا لپاره ددرسي پلان یوه نمونه کومه چې په یوه صفحه کښې ترتیب شوې ده او پورتنیو مطالبونه پکښې ځائ ورکړی شوی دی لید لای شئ .

نمبر ۳

# درسی پلان

نېټه ۰ / ۰ / ۰

ښوونکی (   .   ) صنف ( دوهم ) مضمون (حساب ) موضوع ( دحساب څلور کوني عملي ) عنوان (جمع )

| درسي اهداف | | |
|---|---|---|
| اصلي هدف | دافغانستان داسلامي ټولني د اسلامي ارزښتونو احياء او دپاک خدای (ج) د رضا حصول. | |
| عمومي هدف | ددوهم صنف دشاګردانو لپاره دحساب د مضمون ( علم ) ښوونه او روزنه. | |
| خصوصي هدف | ددوهم صنف شاګردانو لپاره دجمع کولو معنی او مفهوم زده کړه. | |

| ګڼه | مراحل | د درس جريان ( درسي فعاليتونه ) – ښوونکی | د درس جريان ( درسي فعاليتونه ) – شاګردان | وخت | ميتود | وسايل | ارزونه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | [illegible] | - ښوونکی دسلام په اچولو صنف ته داخليږي<br>- ښوونکی دشاګردانو دحال او احوال پوښتنه کوي<br>- ښوونکی دصنف فزيکي او تربيتي نظم جوړوي<br>- ښوونکی دشاګردانو حاضري کوري.<br>ښوونکی کورنی وظيفه ګوري. | - شاګردان دمتقابل احترام په رعايت سره د ښوونکي سلام ته وعليکم وائي.<br>- شاګردان دخپل حال او احوال په هکله معلومات ورکوي<br>- شاګردان د ښوونکي ترهدايت عمل کوي<br>- شاګردان هريو خپل نوم ته متوجه وي<br>- شاګردان په نوبت سره خپله کورنی وظيفه وړاندې کوي | ۵ | عملي، بصري، لفظي ( صحبت، قرائت، تفهيم او نور ) | ځينې مواد لکه کاغذ، لوبيا، نباتات، قلمونه او تصويري چارټ. | |
| ۲ | [illegible] | - ښوونکی دکورنی وظيفي ( د اعداد و طبقه بندي ) ليدلو سره - د تير درس په هکله دشاګردانو مشکلات حل او دنوي درس لپاره شرايط برابروي. | - شاګردان دکورنی وظيفي دوړاندې کولو څخه وروسته دښوونکي په وړاندې خپل مشکلات وړاندې کوي پس له هغې نوی درس ..... | ۳ | | | |
| ۳ | [illegible] | - ښوونکی دشاګردانو د توجه دجلبولو لپاره نوی درس ( جمع ) ته انګيزه توليدوي مثلاً وائي دوه او درې قلمونه يو ځای څو کيږي ؟ ... | - شاګردان ټول دښوونکي سوال ته متوجه کيږي ...... | ۲ | | | |
| ۴ | [illegible] | - دنوي درس دتفهيم لپاره .<br>(۱) مجسم شيان مثلاً د شاګردانو عکسونه ... ددوو ( ۷ = ۲ + ۵ ) کانو سره دشاګردانو په کومک جمع کوو.<br>(۲) د تصويري چارټ په کومک دڅلورو ... دڅلورو قلمونو جمع شاګردانو ته وړاندې کوو<br>(۳) تعريف ( دڅو همجنسو شيانو يو ځای کولو ته جمع وائي ) او علامه يې ( + ) ده. | شاګردان په پوره توجه او دقت سره د ښوونکي عمل ته ګوري - د پنځو کانو يو ځای کول د دوو نورو کانو سره چې مجموعاً اوه کاڼي کيږي، د اسې نتيجه اخلي چې دې عمل ته جمع وائي.<br>- همدارنګه شاګردان چارټ ته متوجه کيږي او دڅلورو قلمونو تصوير دجمعي د علامې په کومک سره د څلورو نورو سره يو ځای وينې او دجمعي مفهوم ترې اخلي. | ۲۰ | | | |
| ۵ | [illegible] | - د نوي درس ( جمع ) د تشريح او توضيح څخه وروسته ښوونکی شاګردانو ته وخت ورکوي ترڅو شاګردان خپل کتاب وګوري او دجمعي په هکله تصويري او عددي مثالونه وګوري، او ځان سره تکرار کړي ترڅو درس تحکيم شي. | | ۳ | | | |
| ۶ | [illegible] | - دنوي درس دتکرار او تحکيم نه وروسته ښوونکی دجمع په هکله څو شاګردانو څخه پوښتنې کوي. مثلاً ۳ + ۲ = ؟   ۵ + ۳ = ؟   ۴ + ۵ = ؟<br>( دا پوښتنې بايد دجمع د تعريف او مفهوم په شاوخوا کښې وشي ) که چيرې د ښوونکي شيرد مثبت جوابونو په مقايسه زيات وي درس موفق او برعکس نيمګړی دی. | | | | | |
| - | کورنی وظيفه | هر شاګرد په کور کښې بايد دجمعي تعريف تکرار او علامه يې ( + ) ... کړي | | ۱ | | | |
| ۸ | | | | ۴۰ | | | |

# تمرین

۱- په ښوونه او روزنه کښې د پرنسیپ څخه مطلب څه دی؟

۲- په تدریسي میتودونو کښې د پرنسیپ رعایت څه رول لري؟

۳- آیا په یو درس کښې د مختلفو میتودونو څخه کار اخستلای شو؟

۴- آیا د تجربې د میتود څخه په ټولو مضامینو کښې استفاده کولای شو؟

۵- د میتودونو په تطبیق کښې د درسي پلان موجودیت څه ګټه لري؟

۶- آیا د ښوونکی سلوك او اخلاق د میتودونو په ښه تطبیق او مؤثریت باندې کومه اغیزه لري او که نه؟ خپل دلایل څرګند کړئ؟

۷- ستاسو په نظر تر ټولو ښه میتود کوم میتود دی؟

۸- که چیرې په څلورم صنف کښې د پښتو په مضمون کښې د درس عنوان (خپله ژبه هم ملا ده هم بلا ده) وي د تدریس لپاره ئې یو واحد درسي پلان جوړ کړئ؟

# دوهمه برخه

## اووم فصل

### درسي ممد مواد او لوازم ( Teaching Aids )

دا یو مسلم حقیقت دی ، چې دانساني ژوند هر عملي او اجتماعي کړنه په مستقیم او یا غیر مستقیم ډول کارپورې مربوط وسایل او لوازمو ته ضرورت لري .

یو ماهر خیاط هغه وخت په زړه پورې او مناسبې جامې ګنډلای شي ، چې د ده دفني او دظیفوي مهارتونو په خوا کښې د ګنډلو ماشین ، بیاتي ، فیته ، تار ، د ماشین مخصوصه ستن .... او داسې نور ضروري کومکي مواد موجود وي ، که نه ؟ نو د جامو د ګنډلو چانس نه لیدل کېږي .

یو ماهر زرګر ، هغه وخت ښایسته او ښکلې ګوتۍ ( انګشتر ) جوړولای شي ، چې د ګوتې جوړولو پورې مربوط کومکي دسایل ورته موجود او اماده وي .

د جراحي یو متخصص ډاکتر ، هغه وخت د یو عاجل مریض د جراحي د رغړې عملیات په کامیاب ډول کولای شي ، چې ډاکتر صاحب ته د جراحي مخصوص کومکي وسایل او سامان لکه پنس ، چاړه ، بیاتي او نور موجود وي .

یو فداکار او سربښندونکی مجاهد ، په عالم اسباب کښې ، پر ملحد دښمن باندې هغه وخت بریالیتوب حاصلولای شي چې په جنګي وسایلو مجهز او سنبال وي .

د پورتنیو مثالونو څخه ښکاري ، چې هر انساني عمل ، د خپل ماهیت او نوعیت مطابق وسایل او کومکي موادو ته ضرورت لري .

درس او تدریس ، چې په واقعیت کښې د زده کړې په منظور ، د ښوونکي او شاګردانو په مشترک فعالیت سره سرته رسیږي . د نورو اجتماعي فعالیتونو

په څېر ځینو، ساده محیطي، تخنیکي، سمعي، بصري او نورو خاصو او تجربه شوو موادو ته ضرورت لري، چې دې موادو ته په پیداګوژیکی ادبیاتو کښې درسي ممد مواد وائي.

په اسلامي تعلیماتو کښې د زده کړې وسائلو ته زیات اهمیت ورکړ شوی دی، کتاب، کتابخانې او نور مطالعاتي مراکز د اسلامي نړۍ په تعلیماتي نظام کښې تاریخي قدامت لري.

حضور صلی الله علیه وسلم (انما بعثت معلماً) د نبوي هدایاتو او ارشاداتو په وخت د[1] موضوع د وضاحت لپاره ضروري مطالب تکرارول (احسن تکرار) او کله کله به ئې د ځمکې پر مخ باندې د موضوع د روښانتیا لپاره کرښې راښکلې لکه چې د دې مقصد لپاره نن په ټولګیو کښې د تورې تختې څخه کار اخستل کېږي.

امام غزالی رح تجربه د معرفت (شناخت)[2] اساسي وسیله ګڼل.

ابن خلدون رح[3] په خپلو تالیفاتو کښې وائي (زده کړه باید د محسوس څخه شروع او په مجرد انتقال وکړي) چې طبعاً پورتني اصول د ممد و درسي مواد وغوښتونکي وي.

اما څرنګه چې ټول اجتماعي امور، د زمان په تېرېدو سره د تغییر او تکامل په حال کښې دي ښوونه او روزنه هم د پرمختګ او انکشاف د پړاوونو په طی کولو سره، پېچلې شکل ځانته غوره کړی دی. په دې لحاظ د ښوونې او روزنې د مسئولینو وجایب هم ورځ په ورځ زیاتېږي، د نن زمانې ښوونکی علاوه له دې څخه چې د تدریس

---

(۱) لار ښود - درهم ټولګ - افغان مهاجرو ښوونکو لپاره کمشنری چاپ (۱۹۸۵) ۴ (۶ - ۵)

(۲) منابع فرهنګ اسلامی - تالیف م.م شریف - ترجمه - ډاکتر سید خلیل خلیلیان چاپ (۱۳۴۹) هـ ش ص (۱۴۹)

(۳) فرهنګ علوم رفتاری - تالیف علی اکبر شعاری نژاد - چاپ (۱۳۶۴) هـ ش ص (۴۸۳)

په پروسه کښې باید د ممدو موادو په توګه د ساده محیطي شیا نو څخه کار واخلي، باید د مغلقو تخنیکي وسایلو څخه هم کار واخلی.

د درسي موادو د نوعیت او د زده کړې د عملي اصولو په تطبیق کښې، محیطي شیان، طبیعي پید اوار، د چا پېریال ژوندی او غیر ژوندی اجسام، کیمیاوی عناصر لکه اوسپنه، جست، کلسیم، سودیم او نور، کیمیاوي مرکبات لکه محلول، تیزابونه، القلی او نور د درسي ممدو موادو په ډول په کار وړل کېږي. همدارنګه ځینې تخنیکي وسایل کوم چې په تعلیمی او تربیتی پروګرامونو کښې مؤثر تماميږي لکه رادیـــو، ټیپ ریکاردر، ( V . T . R )، پروجکتور، سینمائي فلمونه او نور چې اکثراً په تربیتي مراکزو کښې خصوصًا په پرمخ تللی هیوادونو کښې د ښوونې او روزنې د بهبود په منظور په کار وړل کېږي، په درسي ممدو موادو کښې شامل دي.

د پورتنیو معلوماتو په رڼا کښې درسي ممد مواد په لاندې ډول تعریفوو:

درسي ممد مواد د هغو اشیاؤ څخه عبارت دی چې په درس او تدریس کښې مونږ سره کومک کولای شی یا په بل عبارت درسي ممد مواد د هغو ژوندیو او غیر ژوندیو موجوداتو مجموعه ده چې مونږ د هغوئ څخه په درس او تدریس کښې کار اخستلای شو یا په لنډ ډول ویلائ شو چې درسی ممد مواد د هغو وسایلو او موادو څخه عبارت دی چې په تدریس کښې ممد واقع شي. معمولاً تخته، تخته پاک، تباشیر، کتاب، کتابچه، قلم، ځنی حیوانات او نباتات، پنسل، پنسل پاک، چارت، د حروفو کاردونه، د اعدادو کاردونه، د هندسې بکس سامان او لوازم، پورتنی ذکر شوي ژوندی او غیر ژوندي مواد، تخنیکي وسایل او نور د درسي ممدو موادو مهم مثالونه دي.

## د درسي ممدو موادو او وسائلو اهمیت په تدریس کښې

دا به صحیح وي چې یو ښوونکی د درسي ممدو موادو څخه په غیر هم شاګردان مصروف ساتلائ شي مګر کومه دلچسپي ، سهولت اولذت چې د زده کړې په پروسه کښې د درسي ممدو موادو په موجودیت کښې د ښوونکی او شاګردانو په نصیب کیږي ، د کومکي وسائلو په نه موجودیت کښې نه لیدل کیږي.

دښوونې او روزنې اوسنی سیستم د زده کړې د کیفي ودې (۱) په منظور دهغو اصولو او روشونو تاکید کوي کوم چې په هغو کښې د فعالیت زیاته فیصدی، شاګردانو ته متوجه وي ، شاګرد هغه وخت په ښه ډول محور دکار ګرځیدی شي چې محترم ښوونکي د درس د غوښتنې مطابق درسي ممد مواد تهیه کړی وی.

د شاګردانو په تدریسي پروګرامونو کښې ( خصوصًا دابتدائي دورو لپاره ) د شاګردانو ستړیا هم باید په نظر کښې ونیول شي ، د شاګردانو د ستړیا او خستګي د رفع کولو لپاره د درسي ممدو موادو څخه استفاده په زړه پورې تاثیر لری ، کوم چې په درس کښې تنوع مینځ ته راولي.

شاګردان د زده کړې په جریان کښې کوم چې باید په یو واحد درسي ساعت کښې په نظر کښې ونیول شي مشق او تمرین ته ضرورت لري ، مشق او تمرین د درسي ممدو موادو سره په حقیقت کښې نه شلیدونکی رابطه لری .

د درسي ممدو موادو او وسائلو په برکت د مفاهیمو او مطالبو زده کړه د میخانیکیت څخه راووزي او زده کوونکو لپاره درسي مطالب په عینی او مشاهدوي ډول وړاندی کیږي کوم چې د مؤقتی زده کړې څخه په دائمي زده کړه بدلیږی.

د درسي ممدو موادو په کومک سره د ماشوم یا شاګرد حواس مثلًا د آورید و

---

(۱) وسایل و مواد ممد درسی - ساده و محیطی - ریاست تعلیم وتربیه حزب اسلامی - ثنا ولی عطائی، ص ( ۲ - ۲ ) .

حس، دباصري حس، دلامسي حس او نور د موضوع په ارتباط په مجموعي ډول په کار لوېږي.

شاګردان د فردي تفاوتونو په اعتبار د مختلفو استعدادونو لرونکي وي، د مختلفو مېتودونو او مختلفو درسي ممدو موادو څخه د استفادې په صورت کښې ټول شاګردان د درس څخه په نسبي توګه استفاده کولای شي مثلاً د يو شاګرد لپاره آوريدل، د بل شاګرد لپاره لیدل او د بل شاګرد لپاره لمس په زړه راښکونکي وي، که چېرې درسي ممدو موادو څخه د ضرورت مطابق کار واخستل شي، د ټولو شاګردانو مشکل په شکل د اشکالو حلېږي.

د ځينو تخنيکي ممدو موادو په کومک سره لکه تعليمي سينمائي پروګرامونه، راډيو، ټيپ ريکارډر، تلويزون او نورو په همکاري سره د تېرو زمانو واقعات په کم وخت او تمثيلي ډول شاګردانو ته وړاندې کېږي چې د ښوونکي او شاګردانو لپاره ډېر مفيد او دلچسپ وي.

د زده کړې په پروسه کښې د مضامينو لپاره، د درسي ممدو موادو څخه استفاده کومه استثنائي جنبه نه لري، بلکه د ټولو مضامينو لپاره د درسي کومکي موادو آماده کول ضروري دي . . . . داموضوع بايد په نظر کښې ونيول شي. چې د هر مضمون د غوښتنې مطابق درسي کومکي مواد تهيه شي.

د صنفي موقف له لحاظه هم د ابتدائي دورې د شاګردانو څخه ينولې تر لوړو او عالي تحصيلاتو پورې د درسي معاوناتو څخه د کار اخستنې ضرورت شته، مګر د هر صنف د غوښتنې مطابق بايد درسي کومکي مواد تهيه شي. د مثال په ډول د ځغو ماشومانو لپاره چې په لومړي ټولګي کښې درس وائي، آوريدل، لوستل او ليکل يې په نظر کښې دي، د دې مهارتونو د زده کړې لپاره د ډېر ساده او محيطي شيانو څخه درسي ممد مواد تهيه کولای شو، په داسې حال کښې چې د لوړو ټولګيو او عالي تحصيلاتو د شاګردانو او محصلينو

اصطلاحات هم د ذکر وړ دی . اصول صنفي څخه مطلب هغه درسي نظام دی چه د یو صنف ټول مضامین د یو مشخص ښوونکي له خوا د تقسیم اوقات مطابق تدریس کیږی . په صنفی اصول کښی ، ښوونکی د یو تعداد مشخصو شاګردانو سره او شاګردان یو مشخص ښوونکی سره سر او کار لری ، دا اصول د ( ۱ – ۳ ) ټولګي پورې قابل د تطبیق وی ، طبعًا په دې طرزالعمل کښې د هغو میتودونو څخه کار اخستل کیږی چې اکثرًا په هغو کښې شاګرد د فعالیت مرکز وي .

د اصول مضمونی څخه مطلب هغه درسی نظام دی چې په هغه کښې د یو صنف مختلف مضامین د تقسیم اوقات مطابق د مختلفو ښوونکو له خوا تدریس کیږي طبعًا هر ښوونکی د تقسیم اوقات له مخې په مختلفو صنفونو کښې د سپارل شوی مضمون کوم چې د ده د رشتې سره سمون خوري تدریس کوي ، د تدریس مضمونی اصول معمولًا د دریم صنف څخه پورته صنفونو کښې عمومیت لري .

## د ښوونکي امادګی تدریس لپاره

د درس لپاره د ښوونکي امادګی د ټولګی په نظم او ترتیب کښې په زړه پورې اهمیت لری . د درس موٌفقانه جریان او د تاکل شوو درسي اهدافو ترلاسه کول ، د ښوونکی او شاګردانو ګډ فعالیت او پر له پسې جدو جهد پورې اړه لري .[1]

درس لپاره پوره آمادګي ، ښوونکو لپاره ، خصوصًا هغو ښوونکو ته چې د کار ساحې ته نوی معرفي شوی وي ، لازم او ضروري ګڼل کیږی ، د ښوونکي د کار تجربه د هغه د درسي تیاري په اعتبار پوره تاثیر لری ، یعنې که د ښوونکي د کار تجربه زیاته وي امادګي کم وخت ته ضرورت لری او که چیرې د کار ابتدأ وی درس

---

(۱) پیداګوژی - کتاب درسي برای موسسات تحصیلات عالی - پوهنتون کابل ( ۱۸۸ – ۱۸٦ ) ۳

لپاره د ډېرو مغلقو تخنيکي او کيمياوي موادو ځنې د درسي ممدو موادو په توګـه کار اخستل کېږي شو.

لنډه دا چې درسي ممد مواد په زده کړه کښې ستر رول[1] لري، درسي معاونات په زده کړه کښې د تجاربو د انعکاس اساسي وسيله ګڼل کېږي، د درسي معاوناتو په مرسته د يوې خوا شاګردان د هدف په لوري لارښوونه کېږي او له بلې خوا ځنې د شاګردانو د دلچسپۍ او د فکري قوې د لوړتيا سبب ګرځي.

---

(۱) لارښود ـ دوهم ټوک ـ د افغان مهاجر ښوونکو لپاره (کمشنري) ـ م (۱۰۵)

# د درسي ممد و موادو دسته بندي

د تعليم او تربيې ماهرين درسي ممد مواد او لوازم، د درسي موضوعاتو مطابق په مختلفو ډولونو تقسيم بندي کړي دي مثلاً :.

۱ - درسي ممد مواد او لوازم(۱)، د مضامينو له نظره کوم چې په ښوونځي او تعليمي موسسه کښې تدريس کېږي په دوو اساسي ډولونو تقسيم بندي کېږي چې عبارت دي له :

الف : عمومي درسي ممد مواد :- د عمومي درسي موادو څخه مطلب هغه درسي ممد مواد دي، چې په ټولو مضامينو کښې د استفادې له نظره عموميت ولري لکه تخته، تباشير، کتاب، کتابچه، قلم، پنسل او نور.

ب : خصوصي درسي ممد مواد :- د خصوصي درسي ممد و موادو څخه مطلب هغه درسي ممد مواد دي چې په خاص ډول د ځينو مضامينو لپاره پکار وړل کېږي لکه چوټ د حساب د مضمون لپاره، جيومتري بکس د هندسې د مضمون لپاره، کيمياوي عناصر د کيميا د مضمون لپاره، د ځمکې مجسمه کره (مودل ئې) د جغرافيې د مضمون لپاره، د حروفو او الفاظو کارډونه د ژبې د زده کړې لپاره او داسې نور.

۲ - د علومو د رشتوی تقسيم بندئ په اساس هم درسی ممد مواد په مختلفو نومونو يادېږي، مثلا د اجتماعياتو لپاره درسی ممد مواد، د ساينس او طبيعی علومو د پاره درسی ممد مواد، د رياضياتو لپاره درسی ممد مواد، د لسان او ژبی د زده کړې لپاره درسي ممد مواد او نور.

۳ - د درسي جريان له نظره هم درسی ممد مواد په مختلفو نومونو يادېږی

---

(۱)، وسايل و مواد ممد درسی - نوليسنده - شاه ولی د عطائی ) سال ( ۱۳۶۸ ) هوش. ص ( ۱۰ )

لکه هغه مواد چې د نوی درس لپاره انګیزوی خاصیت ولري يعني نوی درس لپاره د شاګردانو توجه جلبوی، هغه درسی ممد مواد کوم چې د نوی درس د تشریح په وخت په کار وړل کېږي او هغه درسي ممد مواد چې د مشق او تمرین لپاره پکار وړل کېږي.

۴- درسي ممد مواد د استفادوي خاصیت له نظره په دوو برخو ویشل کېږی چې په لاندې ډول ښودل کېږی. (۲)

a/ هغه مواد چې په آنی ډول مصرفېږي چې دې ډول موادو ته استهلاکي مواد وائي لکه تباشیر، کاغذ، رنګ، کیمیاوي مواد او نور (استهلاکي).

b/ هغه مواد چې په آنی ډول نه بلکه په تدریجي ډول استهلاک کېږی، چې طبعًا د استهلاک دوره ئی طولاني وي مثلا تخته، تخته پاک، قلم، کتاب او داسې نور (غیر استهلاکي).

۵- د ماهیت او نوعیت له نظره درسی ممد مواد په دوو مهمو اساسي برخو ویشل کېږي چې عبارت دی له:

الف: ساده محیطی مواد: ساده محیطی درسي ممد مواد په خپل وار سره په نورو ډولونو ویشل کېږی.

a- طبیعی محیطی مواد: چې په طبعیت کښې د اصل شی په توګه پیدا کېږی لکه جامدات، مایعات نباتات، ګازات او نور کوم چې په خپل اصلی شکل او کیفیت په تدریس کښې د ښوونکو له خوا تر استفادې لاندې نیول کېږی.

b- غیر طبیعی ساده محیطی مواد: د غیر طبیعی ساده محیطی موادو څخه مطلب

---

(۱) د ښوونکو تربیوی سیمینار- سویډن کمیټه- کال (۱۳۷۰) هـ ش- ص (۹۴)

هغه مواد دي چې د ښوونکي له خوا د ارزان قیمتو موادو څخه په ساده ډول تهیه کېږي لکه چارت ، د کاغذ څخه د هندسي اشکالو جوړول ، رسمونه ، د مشق لپاره وسایل او نور.

ځینې مواد کېدای شي د بازار څخه په قیمت واخستل شي چې اکثراً باید د تعلیمي موسسې له خوا تهیه شي مثلاً د کار تخته ، پوسترونه ، د جغرافیې د مضمون لپاره نقشې، موډلونه او نور.

ب - مدرن تخنیکي مواد : لکه راډیو، ټیپ ریکارډر ، تیلي ویژن ، پروجکتور او نور.

لاندینی چارت لږ په غور سره وګورئ!

د درسي ممدو موادو ساده دسته بندي



# تمرین

۱ / د درسي ممدو موادو څخه مطلب کوم مواد دی ؟ د دې مواد و موجودیت په عملی زده کړه کښې څه اهمیت لري ؟ د یو ساده مثال سره ئې واضح کړئ؟

۲ / داچه وایو د درسي ممدوموادو په موجودیت کښې ، دشاګردانو د ذهني فردي تفاوتونو مشکل تر یواندازې پورې حلیږي د دې څخه مطلب څه دی ؟ موضوع په علمي ډول وڅیړی ؟

۳ / ددرسي ممدو موادو څخه د استفادې په کړنلاره کښې دشاګردانودتعلیمي سویې مطابق کوم تفاوت او تغیر لیدل کیږئ اوکه نه ؟که لیدل کیږی علت به ئې څه وي ؟ موضوع په علمی دلائیلو سره توضیح کړئ ؟

۴/ ددرسي ممدو موادو په دسته بندئ کښې څه نظرلرئ؟ دساده محیطي موادو څخه مقصدکوم مواد دی ؟ مثال سره ئې واضح کړئ؟

# اتم فصل

## دښوونځي ساده محيطي درسي ممدو موادو تفصيل

### تختې :-

الف - توره تخته ( Blaick Board ) :- توره تخته چې د ښوونکي او شاگردانو دکار دتختې په نوم هم يادېږي په تدريسي چاروکښې ددرسي کتاب څخه وروسته د نورو درسي ممدو موادو په مقايسه په کثرت سره استعماليږي.

د تورې تختې په مرسته ښوونکي خپل درسي پروگرام په منظم ډول مخکښې بيائي ، د درس عنوان د درس مهم ټکي ، اصطلاحات فرمولونه او قاعدې د تورې تختې په کومک سره شاگردانو ته توضيح کېږي.

د تورې تختې په مرسته دڅېړ په زده کړه کښې د مفاهيمو لوستل او ليکل او په رياضي کښې د مختلفو حسابي مسائلو مشق او تمرين کيد لای شي. د هندسي قضاياؤ ثبوت او د هندسي اشکالو ترسيم د تورې تختې په مخ په منظم ډول صورت موندلای شي. د ديني ، اجتماعي او طبيعي علومو په درسي مضامينو کښې او حتی د تعليماتو په ټولو دوروکښې ( ابتدائي وی که عالي ) تورې تختې نه په درسي چاروکښې احساس د ضرورت کېږي ، نو ځکه په هر تعليمي محل او موسسه کښې د تورې تختې موجوديت يواساسي شرط دی.

د تورې تختې يا په بل عبارت دکار د تختې ځنې عمده خصوصيات په لاندې ډول دي :-

۱ ، **مساحت** : توره تخته يا دکار تخته بايد نه ډېره لويه او نه ډېره کوچنۍ وي بلکه د تدريس لپاره مساعده او مناسبه وي ، معمولاً دا تخته په عادي ډول د مساحت له نظره طولاً ( 130 cm ) او عرضاً ( 90 cm ) پېشاؤخوا

کښېږي باید دېزاین شي.

۲/ د تختې رنګ :- لکه څنګه چې مونږ مخکښې د تورې تختې ذکر کړی دی، نو دنوم څخه ئې معلومېږي. چې دا تخته باید تور رنګ ولري، مګر څنګه چې دښوونکي او شاګردانو دکار د تختې په نوم هم یادېږي، په دې صورت کښې علاوه له تور رنګ څخه ماشی، سپین، نصواری او سُرمه ئې رنګ هم ورته انتخابیدائی شی لیکن هغه مواد چې د تختې پر مخ وربانڈی کارکیږی لکه تباشیر او بورډ، مارکر باید د تختې د رنګ مخالف وي، ترڅو د لیکل شو وحقایقو لوستل آسان شي.

۳/ د تختې نصبول :- د کار تخته باید په صنف کښې د شاګردانو د قد او جسامت په تناسب د صنف په یو مناسبه ارتفاع نصب شي.

۴/ د کار تخته باید نه زیاته کلکه او نه زیاته نرمه وی بلکه دیو ډول معتدلو موادو لکه د ارچې لرګی څخه جوړه شي.

۵/ تخته باید په صنف کښې په داسې شکل نصب شي چې د وړانګو لګیدنه د شاګردانو باصری حس ته متوجه نه وي.

۶/ د تختې کار باید په منظم ډول د ښی خوا څخه شروع او کیڼ خوا ته حرکت وکړي.

۷/ د تختې ضمني وسایل باید مخکښې له مخکښې اماده او د کار د ختمېدو سره سمه تخته باید پاکه شي.

ب :- فلِلنی تخته:- لکه چې د نوم څخه ئې معلومېږی دا تخته د فلِلنی کپړې څخه جوړېږی اما د فلِلنی کپړې په نه موجودیت کښې کیدائی شی د نورو پت دارو کسپړو څخه هم جوړ شي، په دې شرط چې د نورو ضمنی موادو لکه تکه ئې او کاغذي تصاویرو او شکلونو د جذب خاصیت ولری. (۱)

---

۱) وسایل و مواد ممد درسی و آموزشی. نویسنده استاذ شاه ولی (عطائی)، چاپ (۱۳۶۲) هـش ص (۱۲-۱۳)

فلِلنی تخته دماشومانو دغلاقې وړ درسي ممدو موادو تخته دي او معلمين ددې تختې تخته په خپلو درسي پروګرامونو کښې د مختلفو سويو او مختلفو مضامينو په تدريس کښې استفاده کولای شي.

فلِلنی تخته په ډېر آسان او ساده ډول او په ډېر ارزان قيمت جوړېدلای شي مثلاً يو متر اير رنګ فلِلنی کپړه را اخلو او د تختې په شکل ئې تنظيموو او دصنف په يو مناسب ځای کښې ئې په مؤقتي او يا دايمي ډول ځړوُواو په تدريس کښې ور تخته کار اخلو.

هغه ضمنی مواد چې د فلِلنی تختې د استفادی لپاره لازم ګڼل کېږی عبارت دی له :-

a- تصاوير، شکلونه او علايم کوم چې په مختلفو رنګونو د فلِلنی کپړې او يا کاغذ تخته جوړ شوی وی.

b - قطع شوي حروف چې د کاغذ تخته جوړ شوي وي.

c - قطع شوی اعداد چې د کاغذ يا کپړې تخته جوړ شوی وی

d - قطع شوي هندسي شکلونه چې د کاغذ يا کپړې جوړ شوي وی.

e - قطع شوی جغرافيائی علايم او حدود ... او نور

که چېری په کاغذ يا کپړه کښې د نښلېد و خاصيت موجود نه وی نوکولائی شو چې د سريښ يا ريګمال تخته کار واخلو.

د بلجيم د کمېټې د ( T . T . C ) په تربيتی پروګرام کښې چې ښوونکو لپاره کورسونه دايروی د فلِلنی تختې په ځای ئې د لمڅې تختې ( Felt board ) تخته کار اخستل کېږي، دا تخته نسبتاً قيمته تمامېږي مګر د کيفيت له نظره ښه وی، ددې تختې طول ( 130 cm ) او عرض او عرض ئې ( 90 cm ) اټکل شوی دی .

او د رياضي او د ژبې په زده کړه کښې ورځخه په پراخه پيمانه استفاده کېږي، دا تخته يوه صندوقچه هم لري چې په هغه کښې د تصاويرو او علايمو کلدوزي شوې کېړه، بياني او نور مواد پکښې ځائي په ځائي شوي دي چې د ضرورت په وخت کښې په تدريس کښې ورځخه کار آخستل کېږي، د دې تختې ځخه د مؤثرې استفادې په منظور د ( لمځي تختې د لاربنود ) په نوم يو کتاب هم ليکل شوي دی، چې ښوونکي ورځخه استفاده کولائ شي.

ج - د نشراتو تخته :- دا تخته چې د فرهنګي نشراتو د تختې په نوم هم يادېږي، عمومًا د تعليمي موسسې د هدایاتو، تصاميمو او تصاويرو او د شاګردانو مقالاتو او مضامينو د نشر او پخش لپاره پکار وړل کېږي.

د نشراتو تخته د نسبتًا نرم لرګي، لمځي او هغه نرمو موادو ځخه کوم چې د سنجاق ځخه د استفادې امکان پکښې موجود وي جوړېدائ شي، د دې تختې لويوالي او کوچنې والي د موسسې غوښتنې پورې اړه لري. مګر دا تخته بايد په هغو ځايونو کښې نصب شي چې شاګردان او د مؤسسې منسوبين په آزادانه ډول مضامين او ليکل شوي حقائق ئې ولوستلای شي، د ښوونځي عمومي صحنې او دهليز د دې تختې د نصب مناسب ځائ دی.

د - پيګ بورډ ( Pegboard ) يا ميخي تخته :- د درسي ممدو موادو په مروجو موادو کښې يو هم پيګ بورډ يا ميخي تخته ده[1] د يو ډول مسطح او څلورضلعي شکله لرګني تختې ځخه عبارت دی چې په هغه کښې مناسب او سپنيز ميخونه ټک وهل شوي وي.

د دې تختې په مرسته د ابتدائي دورې د شاګردانو لپاره، د مختلفو اشکالو

---

(۱) مبند سه. د ښوونکو د کورسونو لپاره ( T.T.C ) مؤلف. محمد کريم (حنيفي) سال (۱۳۷۱) صفحه (۲)

لپاره امادګي نيول زياتوخت ته ضرورت لري ، چې دامهم ټکی باید له نظره ونه غورځول شي.

دموضوع د وضاحت له پاره دوه ډوله آمادګی ټخه یادونه کوو چې د مقدماتي او مستقیم امادګی ټخه عبارت دی.[1]

**الف : مقدماتي امادګی ( تیاری ) :** د تدریس لپاره د مقدماتي آمادګی ټخه مطلب هغه آمادګی او تیاری دی ، کوم چې ښوونکی باید د درسي موضوع او مضمون لپاره مخکې له مخکې په نظرکښې ولري.

دمضمون په اعتبار د مضمون د محتوا په هکله ، پيداګوژيکی او ميتوديکی صلاحيتونو او درسي پروګرام سره دپوره تسلط او آشنايئ په منظور خصوصی او دوامداره مطالعه د موضوع په هکله د تجاربو ټخه استفاده ممدو موادو تهيه او ترتيب ، د تدريس لپاره مشخص محل ، د درسي اوقاتو تقسيم بندی ، د خپل مضمون د صنفی موقف ټخه په تيرته او پورته مضامينو کښی معلومات حاصلول د مقدماتي امادګی اجزاوې تشکيلوی .

د تعليمي کال د شروع ټخه مخکښې ښوونکی باید د خپل یوکلن درسی فعالیتونو په مورد پیشبین واوسي ، یوکلن درسي موضوعات ، هفته وار تقسیم اوقات ، کلنی ، میاشتنی او ورځنی درسي پلان په هکله معلومات او تیاری په مقدماتي امادګی کښی شاملیدی شي .

**ب : مستقیمه امادګي :-** د ښوونکي په مستقیمه امادګی کښې معمولاً هغه تیاري او اقدامات دسته بندي کیږي کوم چې په بالفعل ډول د درسي پلان په تطبیق کښې عملي کیدونکي وي .

د درسي موضوع د پلانګذارئ کوم چې دیو درسی ساعت لپاره مدنظر وي ،

---

( ۱ ) پيداګوژی - کتاب درسی برای موسسات عالی - پوهنتون کابل
( ۱۸۸ - ۱۸۶ )۳

خصوصًا هندسی شکلو نو لپاره کاد آخستل کیږی ، ددې تختې څخه د استفادې په وخت کښې يو رابربند ته هم ضرورت دی چې د هغې په مرسته مختلف هندسي شکلونه لکه مربع ، مستطیل ، دایره ، مثلث او نور وښوول شی.

لاندینی چارت ته لږ دقت وکـــړئ :-



## چارتونه ( Charts

چارت د درسی کومکي موادو په قطار کښې د هغه بصري وسیلې ځخه عبارت دي چې دکلماتو جملاتو تصاویرو اویا اشکالو مجموعه دیو نسبتًا لوئ کاغذ پرمخ افاده کوي. چارت د مطالبو دښه توضیح په منظور داداري اویا د ښوونکی له خوا ترتیب او د استفادې په منظور آماده کېږي. چارت د مباحثو داختصار، د درسی مفاهیمو دښه توضیح او دشاګردانو دلچسپۍ لپاره په زړه پورې وسیله ده. دچارتونو ځخه په ټولو مضامینو کښې کار آخستل کېږي.

چارتونه د متشکله موادو او ساختمان له نظره په مختلفو ډولونو دسته بندي کېدای شي چې ځینې ډولونه ئې عبارت دي له :-

**الف - لوله ئي چارت :** د هغه چارت ځخه عبارت دی[1] چې نسبتًا نرم کاغذ ( چارت کاغذ ) ځخه د درسي موضوع د اختصار په منظور جوړېږي، چې د لوله کېدو قابلیت ولري ، دا ډول چارت د ښوونکی او شاګردانو په واسطه په ارزان او کم مصرف سره تهیه کېدای شي.

ددې ډول چارتونو انتقال آسان دی. د دې چارت ځخه ښوونکی په خپل درس او تدریس کښې په روزمره ډول استفاده کولای شي.

**ب - تکه ئي چارت :-** دهغه چارت ځخه عبارت دی چې دیو ډول مناسب کپړې ځخه جوړشوی وي ، تکه ئي چارت دکتان ، نخ ، تترون او نورو کپړو ځخه جوړېدای شي ، مګر اکثرًا د تکه ئي چارتونو په جوړولو کښې د سان او پنبه ئي کپړو ځخه زیات کار آخستل کېږي.

د تکه ئي چارتونو جوړول په اوسینو شرایطو کښې زیات رواج موندلای،

---

(۱) وسایل ومواد ممد درسی ریاست تعلیم وتربیهٔ حزب اسلامی افغانستان شاولی دعطائی ، چاپ (۱۳۶۸) هـ ش ، ص (۱۰)

تعلیمي او تربیتي مؤسسات او فرهنګي مراکز د ذده کړې او همدارنګه د اشتهاراتو او اعلاناتو لپاره د دې ډول چارتونو څخه کار اخلي. د تکه يي چارتونو کیفیت به هغه وخت زیات وي چې په ښکلي خط او مناسب ډیزان ترتیب شي.

د تکه يي چارتونو د ښو صفاتو څخه یو داهم کېدای شي چې دا ډول چارتونه په ډېرې آسانۍ سره د یو ځای څخه بل ځای ته قابل د انتقال وي.

ج :- مقوائي چارت :- دا ډول چارتونه د نسبتًا ډبل او ضخیم کاغذ څخه جوړېږي چې معمولاً د لوله کېدو قابلیت نه لري. دا ډول چارتونه د ځینې نورو ضمني وسائلو لکه سه پایه او نورو په مرسته تر استفادې لاندې نیول کېږي، د دې ډول چارتونو وړل او راوړل نسبتًا مشکل وي.

د :- فلپ چارت :- که چېرې یو تعداد چارتونه کوم چې یو د بل سره رابطه ولري په داسې منظم ډول ترتیب شي چې د ضرورت په وخت یو پر بل واړول شي د فلپ چارت په نامه یادېږي.

په دې ډول چارتونو کښې دا کیفیت موجود دی، چې د ښوونکي کار آسانوي، دا ځکه چې د چارتونو د پراګندګۍ څخه مخنیوی کېږي. ښوونکی د ضرورت په وخت کښې په ډېرې آسانۍ سره کولای شي خپل د ضرورت وړ چارت د شاګردانو په مخ پرانیزي. دا ډول چارتونه په تعلیمي موسساتو کښې خصوصًا په مسلکي تحصیلاتو کښې زیات رواج لري.

هـ :- پرده يي چارت :- د شاګردانو د ذهني تمرکز د جلبولو په منظور د دې ډول چارتونو څخه کار اخستل کېږي د مثال په ډول د درسي مطالبو په هکله ترتیب شوی چارت تر یو وخت پورې د یوې نازکې کاغذي صفحې او یا باریکو پارچو په واسطه پټ ساتل کېږي، د موضوع په ارتباط د ښوونکي او شاګردانو د مباحثې څخه وروسته د وضاحت لپاره د چارت د مخ څخه پرده لرې کېږي او موضوع

توضیح کېږي.

د چارټونو د مختلفو ډولونو په نظر کښې نيولو سره محترم ښوونکی کولای شي د مضامينو د غوښتنې مطابق د خپلو درسي عناوينو مطابق چارټ تهيه کړی ، د چارټ موجوديت يو مشخص مضمون پورې مختص نه دی بلکه د ټولو مضامينو لپاره ممد واقع کېږي . د چارټ د ښه استفادې په منظور بايد لاندينو ټکو ته توجه ولرو:-

۱/ چارټ بايد په يوه مناسبه اندازه حاشيه يا څنډې ولري .

۲/ د چارټ مطالب بايد ډېر زيات نه وي .

۳/ په چارټ کښې بايد اضافی رسمونو او غيرضروري علايمو ته ځای ورنکړ شي .

۴/ د چارټ په سرکښې د مؤسسې او يا د جوړونکي شخص د نوموړو د ليکلو ضرورت نشته که چېرې لازم وګڼل شي نو بايد په ډېر باريک خط سره په لاندينۍ حاشيه کښې وليکل شي .

۵/ څرنګه چې چارټ د يو درسي ممد و موادو په توګه د اهميت وړ شی دی او له بلې خوا نه د چارټ په جوړولو کښې وخت او پيسې مصرفېږي هيله کېږي چې په استعمال کښې ئې احتياط او په ساتنه کښې ئې زيانه توجه او پاملرنه وشی .

# د چارت اقسام


چارت
لوله ئي چارتونه
تکه ئي چارتونه
مقوائي چارتونه
فلپ چارتونه
پرده ئي چارتونه

## موډلونه ( Models )

د ا یو واقعیت دی چې زده کونکو لپاره خصوصاً دابتدائی دورو دشاګردانو دښه تدریس په منظور د درسي ممدو موادو په قطار کښې اصلی شی کوم چې په طبیعی اویا اصلی ساختمان اماده شی ژور تاثیر لری، داځکه چې محسوسات په ورځنی ژوند کښې داهموعناصرو څخه شمېرل کېږی او زده کوونکو لپاره په تربیتی فنونو کښی باید حس اوعمل پایه او اساس وګڼل شي. مګر ځینی وختونه داسې واقع کېږي چې داصل شی د نه موجودیت اویا داچې اقتصاداً نه شوکولای چې د ضرورت ور شی شاګردانو ته تهیه کړو او یا داچې د ډېر عنوالی له کبله نه شوکولای اصل شی صنف ته حاضر کړو په دې صورت کښې بلهچاره نه شته ترڅو داصل شی په عوض د هغو وسایلو څخه کار واخلو چې اقلاً دشاګردانو په ذهن کښې د موضوع په ارتباط یو ذهنی تصوّر پیدا شی د هغو وسیلو څخه یوه وسیله موډل دی.

موډل د اصل شی دیو جوړ کړی شوې نمونې څخه عبارت دی، چې ممکن داصل شی څخه کوچنی او یا لوی وي ممکن په زده کړه او تدریس کښې ډېر وګټور او ارزښتناکو درسی ممدو موادو څخه دی.

دموډلونو په کومک سره شاګردان، دډېر و مشکلو او پېچلو مسائلو په زده کړه باندې په ډېره آسانی سره بریالی کېږي.

دموډلونو په مرسته شاګردان کولای شی د اصل آشیا په هکله معلومات تر لاسه کړی، د موډل په مرسته عملاً شاګرد په کار لوېږي، شاګرد سره دموضوع په ارتباط علاقه او دلچسپي حاصلېږی، د موډل په مرسته دزده کړې زمانی فاصله لنډېږی، داځکه چې د شاګردانو حسي اوذهني قواوې په ښه ډول مرکوز کېږي.

---

(۱) راه نو در تعلیم و تربیت . نګارش حسین کاظم زاده . ص ( ۱۶۲ - ۱۶۳ .

مسلکي زده کړه اوهمدارنګه په تخنیکي چارو کښې ددې وسیلې تخته په زیاته پیمانه کاراخستل کېږی ، علاوتًا په اشتهاراتو اونورو تجارتی پروګراموکښې ددې وسیلې تخته په کافی اندازه کار آخستل کېږي.

دمودلونو تخته د زده کړې په پروګرامونو کښې په اکثرو مضامینو کښې استفاده کېږي خصوصًا د جغرافیې ، ریاضي ، فزیک ، بیولوژي ، نظامي تعلیمات، طبعیت شناسی اونورو کښې.

## جیومتری بکس (Geomatry Box)

جیومتری بکس یا هندسی بکس ته مطلب د هغو وسایلو او ممدو موادو یوسیت دی، چې په ریاضی او هندسه کښې د هغوئ ته اکثرًا کار آخستل کیږی.

په جیو متری بکس کښې طبعًا خط کش، نقاله، گونیا، مثلث، دائره کش، دوسوزنه، پنسل، پنسل پاک او ځنی نور ضروری وسایل شامل وي، چې ښوونکی خصوصًا د ریاضی او هندسې استاذان د هغوی ته د ضرورت مطابق په درسی مسائلو کښې کار اخلي.

## چوټ ( ABACUS )

چوټ چې د حساب د ساده ماشین په نوم ( ABACUS ) هم یادیږی، د ابتدائی دورې د شاگردانو لپاره د حساب په زده کړه کښې یوه ضروري وسیله ده.

چوټ یا ابکس په ډیر ساده ډول د یو مستطیل شکل چوکاټ په ډول ترتیبیږی، چې په هغې کښې د مریو مشخص تعداد په داسې ډول منظم کیږي چې د هغوی له مخې د اعدادو طبقه، مرتبه بندی او حتی د حساب څلورگونې عملیې پر ماشومانو باندی عملًا کار کیږي.

## مجسمه کره ( Sphere )

مجسمه کره د بصری وسایلو څخه ده، چې د زمکې د کرې د نمائش لپاره یوازینۍ[1] وسیله گڼل کیږی. په مجسمه کره کښې تحریف او اشتباهات نه لیدل کیږی، مثلاً هغه اشتباهات او غلطۍ گانې کوم چې په نقشه برداری کښې اکثراً لیدل کیږی په مجسمه کره کښې نه تکراریږي، له دې جهته د ښوونکو له خوا خصوصاً د جغرافيي په مضمون کښې د دې درسي وسیلې څخه په اعظمي توگه استفاده کیږي کوم چې د ځمکې پر مخ د اوبو او وچې ویش، د ممالکو موقعیت، د غرونو ساختمان د دریابونو خط السیر او نور جغرافیاوي موضوعات په نوښتی او نمایشی ډول تمثیلوی.

مجسمه کره په مختلفو اندازو د مختلفو موادو څخه جوړیدای شي مثلاً پلاستیکي مجسمه کره، رابري مجسمه کره، د لرگي څخه جوړه شوی مجسمه کره او داسې نور.

مصنوعي مجسمه کره د درسی ممدو موادو څخه یوازینۍ وسیله ده چې د زمکې پر مخ د فاصلې د اندازه گیرئ، د زمکې موقعیت او تجسم، د نظام شمس، کیهان او نورو سماوی اجسامو په مقایسه تمثیلوی.

د مصنوعي مجسمې کرې په مرسته کولای شو د ځمکې شکل، د ځمکې حرکتونه، د کال فصلونه او نور په آسانۍ سره شاگردانو ته تفهیم کړو.

که چیرې مجسمه کره په مکتب او چاپیریال کښې موجوده نه وی، د ضرورت په وخت کښې محترم ښوونکي کولای شی د نورو محیطی اشیاؤ څخه لکه د وليبال توپ، نارنج او نورو کروی اجسامو څخه کار واخلي.

---

(۱) تدریس بهتر مضمون جغرافیه - مؤلف گل احمد - چاپ (۱۳۷۰ هـ ش) ص (۴۲ - ۴۳)

# نقشې ( Maps )

نقشې په حقیقت کښې دیو کاغذي او یا کاغذ په څېر صفحې څخه عبارت دي چې ده‌غې پر مخ د ځمکې دیوې قطعې، ښار، مملکت یا دیو دستګاه د جوړولو طرح او علامه ګذاري شوې وي.

نقشې د ځمکې ده‌مواري سطحې او همدا رنګه د نورو علمي او معرفتي مسایلو د تفهیم په منظور د مختلفو خطونو رنګونو او علامو په واسطه ترتیب او ښودل کېږي.

د نقشې څخه د مختلفو مضامینو په تدریس کښې کار اخستل کېږي، حصوصاً د جغرافیې د مضمون د تدریس لپاره د جغرافیائي نقشو څخه زیات کار آخستل کېږي.

د زده کړې د پروګرامونو د موفقیت آمیزه تطبیق په منظور د نقشو څخه موثره استفاده کېږي.

نقشې په مختلفو ډولونو ډیزاین کېږي چې ځنې ډولونه ئې عبارت دي له:

تصویري نقشې، اقتصادي نقشې، سیاسي نقشې، بشري نقشې، طبیعي نقشې او نور....، د نقشو څخه د استفادې موثریت هغه وخت په زړه پورې وي، چې د نقشې په خوا کښې مجسمه کره هم موجود وي.

د نقشې څخه دیو موثر ممد درسي مواد په توګه د استفادې په منظور لاندینیو ټکو ته باید توجه ولرو:

۱/ نقشه باید د خط او ډیزاین له نظره واضح او برجسته وي.

۲/ د نقشې په ترتیب کښې باید د پوره دقت څخه کار واخستل شي.

دښوونکي په مستقیم فعالیتونو کښې جمع بندي کېدای شي ، د درسي پلان په ترکیب او ساختمان کښې باید اقلاً داجرا تاریخ ، موضوع ،عنوان ، د درس مراحل. اهداف، درسي فنون اومیتودونه ، درسي وسائل اوضروري مواد ، دښوونکي اوشاګردانو ګډ فعالیت ، دشاګردانو فعالول ، دشاګردانو انفرادي اوګروپي فعالیتونه ،د درس تعلیمي اوتربیتي نتایج ،ارزیابي او دکورنۍ وظیفې سپارل راتلونکي درسونو لپاره د شاګردانو توجه جلبول په هغو مهمو فعالیتونو کښې راځي چې په حقیقت کښې د مستقیمې امادګۍ څخه نمایندګي کولای شي. د درس په جریان کښې درسي پروګرام رهنمائي اوکنترول ،متن پورې مربوط نظري اوعملي اقدامات او په نهایت کښې احتمالي سوالونو ته دجواب تهیه کول دښوونکي د مستقیم امادګۍ څخه شمیرل کیږي.

# په تدریس کښې ځنې مؤثر عوامل

طبعًا هر انساني عمل دیوهدف ښکارندوی وي ، هراقدام د مؤفقیت مقتضي وي ، هره وظیفه او مشغولیت د اصولیت اوقانونیت تابع وي. هرمشغولیت او مصروفیت ، مقتضیاتو مطابق دخاصو ذهني، جسمي او اخلاقي اعمالوغوښتونکي وي، په آخرین تحلیل کښې کامیابي اوبریالیتوب د هغه چا په برخه وي چې دخپلې وظیفې په اعتبار د معلوماتو، اطلاعاتو، مهارتونو او تجاربو لرونکي وي.

ښوونکي په واقع کښې دهغه اجتماعي وظیفې علمبردار دي ،کوم چې ایماني او وجداني مسئولیت یې په ټولنه کښې واقعًا یادولو وړ دی. معمولاً په یو درسي عملي پروګرام کښې د فعالیت دوه اساسي برخې لیدل کیږي چې یو یې د ښوونکي اوبل یې د شاګردانو فعالیت دی، چې یو دبل سره لازم او ملزوم اجزاوې دی. ښوونکي د خپل مسلک مطابق اکثرًا لاندینیو سوالونو سره مخامخیږي چې عبارت دی له:-

څوک تدریس کوي ؟

۳ / د نقشې د مختلفو نقاطو د پېژندنې لپاره باید د مختلفو علايمو او رنګونو څخه کار واخستل شي.

۴ / نقشه باید د یو مناسب کاغذ یا کاغذ په څېر موادو څخه جوړه شي.

۵ / د نقشې څخه د استفادې اصول او طریقه باید په نظر کښې ونیول شي.

۶ / د نقشې څخه د استفادې په وخت کښې د لاس په عوض د یو ضمني وسیلې څخه لکه مناسب لرګی او نورو څخه کار واخستل شي.

# ګرافونه ( Graphs )

ګراف هم د زده کړې په پروسه کښې د بصري ممدو موادو څخه شمېرل کېږي ، چې حقایق ، اعداد او احصایوی ارقام د رسمونو او اشکالو په واسطه افاده کوي .

ګراف هم په درس او تدریس کښې په زړه پورې اثر لري ، د شاګردانو علاقه او شوق راپاروندې او د خستګۍ او سترړیا څخه مخنیوی کوي او د شاګردانو د هنري قوی په تقویه کولو کښې هم مؤثر واقع کېږي .

د ګرافونو څخه په ټولو مضامینو کښې کار آخستی شو خصوصاً ، ریاضی ، هندسه ، فزیک ، تاریخ ، جغرافیه کیمیا ، بیولوژی او نور .

ګرافونه په مختلفو ډولونو ترتیب او جوړیدای شي مثلاً دایروی ، خطي ، تصویری ، سطحی او نور .

## کومیک یا قطع کېدونکی پارچې

د قطع کېدونکی پارچو ( کومیک ) څخه مطلب هغه الفاظ ، رسمونه او تصاویر دي چې د حقائقو د توضیح لپاره پکار وړل کېږی ، د کومیک څخه د ژبې او ریاضي په زده کړه کښې او همدا رنګه د جغرافیائي واقعیتونو د افهام او تفهیم په منظور کار اخستل کېږی . د کومیک په مرسته شاګردان اطلاعات او معلومات په ډېر آسان او مختصر ډول تر لاسه کولای شي .

## تصاویر ( Pictures )

دا به صحیح وی چې د اصل شی په موجودیت کښې موضوع په ښه ډول تفهیم کېدای شي، مګر ځینې وختونه داسې واقع کېږي چې د اصل شی د نه موجودیت په صورت او یا د اصل شی د ډېر عنوالی په اساس ښوونکو لای چې صنف ته ئې راوړو نو په دې لحاظ په نیمه مجسم ډول د اصل شي د تصویر څخه کار اخلو.

په حقیقت کښې تصویر د اصل شی د رسامی او یا عکس برداری محصول دی، کوم چې د اصل شی څخه یالوی او یا نسبتا کوچنی وي.

په زده کړه کښې د اصل شي او یا د مودل څخه وروسته تصویر د اهمیت وړ درسي ممدو موادو څخه ګڼل کېږي. دغه فنی وسیله د زده کړې لپاره د مؤثرو درسي کومکي موادو څخه دی.

د ښوونې او روزنې ماهرین د زده کړې لپاره او همدا رنګه د زده کوونکو د سرګرمۍ او درسی علایقو د تقویې په منظور د تصاویرو څخه په استفاده کولو د ښوونکو اقدامات لازمي ګڼي.

**کارت**[1]: کارت هغه بصری درسی ممد مواد دی، چې د موضوع یو جز د کلمې، لفظ یا عدد په شکل واضح کوی.

**اصل شی**:- هغه شیان چې په اصلی ماهیت په تدریس کښې په کار وړل کېږي لکه معدنی مواد، تاریخی آثار او آبدات، طبیعی مناظر او نور.

**پوستر**: د هغه درسی وسیلې څخه عبارت دي چې یوه خاص او مشخصه موضوع د کاغذ پر مخ د رنګه تصویرونو په څېر توضیح کوی.

---

(۱) ښوونکو ښېرۍ سمینار - سویډن کمېټه - چاپ (۱۳۷۰) هـ ش. ص (۹۵-۹۶)

# تمرین

۱/ د توري تختې په کومک په صنف کښې کوم ډول درسي فعالیتونه اجراء کېدای شي؟ د توري تختې مساحت په اوسط ډول باید په کومه اندازه وي؟

۲/ د توري تختې څخه د استفادې په وخت کښې باید کوم خصوصیات په نظر کښې و نیول شي؟ د توري تختې رنګ باید څنګه انتخاب شي؟

۳/ د نشراتو تخته د درسي فعالیتونو سره څه رابطه لري؟

۴/ فلیلني تخته کوم ډول تخته ده؟ د دې تختې څخه د استفادې په منظور باید کومو موادو ته دقت او توجه وشي؟

۵/ د لمڅې تخته د اهمیت له نظره څرنګه ارزیابي کوی؟

۶/ میخي تخته ( Peg board ) په کومو مضامینو کښې د استفادې وړ ده؟

۷/ چارت په کوم ډول درسي وسایلو کښې راځي؟ څو ډوله چارتونه پېژنئ؟ د چارت څخه د ښه استفادې په منظور باید کومو موادو ته دقت وشي؟

۸/ مودل یعنې څه؟ د اصل شي څخه څه توپیر لري؟ په تدریس کښې څه اهمیت لري؟

۹/ جیومتري بکس او چوټ څخه په کومو مضامینو کښې اکثراً استفاده کېږي؟

۱۰/ مجسمه کره په کوم مضمون کښې اکثراً د استفادې موارد لري؟ د کومو موادو څخه جوړېدلای شي؟ په تدریس کښې څه اهمیت لري؟

۱۱ / نقشه یعنې څه ؟ د نقشې څخه د استفادې په وخت کښې باید کومو ټکو ته زیاته توجه وشي ؟

۱۲ / د گراف څخه د کومو درسی مفاهیمو په انتقال کښې کار آخستل کیږي .

۱۳ / د تصاویرو څخه د استفادې اصلي علت په تدریس کښې څه دی ؟

۱۴ / د کارت څخه د کومو موضوعاتو په تدریس کښې کار آخستلای شو؟ د پوستر څخه مطلب څه دی؟

# نهم فصل

# مدرن تخنيکي وسایل

# ( Modern Technicul Equipments )

په موجوده عصر کښې د ساده محیطي ممدو درسي موادو څخه علاوه[۱] د تخنيکي مدرنو وسائلو څخه هم کار اخستل کېږي، د سمعي او بصري وسایلو څخه خصوصًا په پرمخ تللی او صنعتی هیوادونو کښې زیاته استفاده کېږي.

په اروپا او امریکا کښې د هر کم هیوادونه لیدل کېږي چې دهغوی په تعلیمي او تربیتي پروګرامونو کښې د پوره پرمخ تللی او اتوماتیکی سمعي او بصري وسایلو څخه په اعظمی توګه کار وانه خستنل شي.

په اوسنی عصر کښې د زده کړې په پروسه کښې د تخنیکی وسایلو د مختلفو ډولونو څخه کار آخستل کېږي چې مونږ ئې دلته څو ډولونه د نمونې په شکل مختصرًا توضیح کوو:.

۱ - پروجکتور ( Projector ):. پروجکتور یو ډول تخنیکي[۲] وسیله ده، چې نسبتًا پرمخ تللی هیوادونو کښې دهغه څخه زیاته استفاده کېږی، د پروجکتور څخه د زده کړې په رابطه په زړه پورې کار آخستنل کېږي.

د دې وسیلې په واسطه سلایدونه، فلم ستریپ او نور په رنګه او یا تور او سپین په شکل شاګردانو ته ښوول کېږي.

---

(۱) راه نو در تعلیم و تربیت . نګارش حسین کاظم زاده - ص ( ۱۶۷ ).

(۲) تدریس بهتر مضمون جغرافیه مؤلف ګل احمد - ص ( ۴۸ - ۵۱ ).

فلم ستریپ چې په حقیقت کښې د ښوونې او روزنې د مجربو ماهرینو له خوا تهیه او ترتیب کیږي . د درسي موضوعاتو په رابطه کښې د زده کوونکو د افهام او تفهیم لپاره مؤثر او دلچسپ تمامیږي - البته دا فلمونه په مخصوصو جبعو کښې ساتل کیږي او د ضرورت په وخت کښې نمایش لپاره اماده کیږي .

د سلایدونو څخه هم په درس او تدریس کښې خصوصاً د جغرافیې او د طبیعي علومو په نورو څانگو کښې اعظمي استفاده کیږي . د مطالعې په نتیجه کښې ترلاسه شوې دی چې د سلایدونو څخه استفاده د فلم ستریپ په مقایسه په تدریس کښې نسبتاً گټور تمامیږي ، دا ځکه چې مدرس کولای شي . حسب الخواهش د تدریس لپاره سلایدونه انتخاب کړي او د تدریس په جریان کښې شاگردانو ته نمایش ورکړ شي .

۲ - سینماتوگرافي :- د سینمائي حرکي فلمونو په مرسته کوم چې تربیتي جنبه ولري د شاگردانو او ښوونکو لپاره مؤثر واقع کیږي . د تربیتي فلمونو په مرسته کوم چې د یو درسي موضوع په هکله ترتیب شوي وي ، په زیاته پیمانه درسي او تربیتي اهداف په ډیر کم وخت کښې انتقالیږي .

د فلم په برکت د زیاتو زماني فاصلې یو حکایت او یا قضیه په ډیر کم وخت کښې توضیح کیږي مگر باید په تربیتي فلمونو کښې زیاته توجه دې ته وي چې د شاگردانو د سویې ، مسلک او تربیتي اهدافو مطابق ترتیب او انتخاب شي . سینمائي تربیتي فلمونه غالباً سمعي او بصري وسایلو څخه شمېرل کیږي .

## راډیو ( Radio )

د سمعي او بصري وسائلو په مجموعه کښې راډیو د سمعي وسائلو څخه یوه اهمه وسیله ده (۱). په تدریس کښې د دې وسیلې څخه په یوه محدوده ساحه کښې کوم چې په هغې کښې د موضوع تفهیم یوازې د آورید و د قوې په واسطه امکان ولري استفاده کیږي.

په دسته جمعي توګه هم ځنې خاص تربیتي پروګرامونه د راډیو له لارې نشر ته رسیږي، چې عام خلق ورڅخه مستفید کیږي. همدارنګه ښوونکي او شاګردانو د علاقې وړ مطالب کوم چې د آورید و له لارې قابل د جذب او هضم وي، د مخصوصو پروګرامونو له لارې د راډیوئي مسئولینو له خوا نشر کیږي.

د دې کار لپاره د اکثرو هیوادونو د ښوونې او روزنې د وزارت په تشکیل کښې د تعلیمي راډیو او یا تعلیمي راډیو تلویزیون په نامه ځانګړې څانګه لري، چې د دې مسئول شعبې له لارې تربیتي مفاهیم او تعلیمي موضوعات کوم چې د ښوونکو، زده کوونکو او عامه خلقو د اصلاح او تنویر وظیفه لري نشر ته سپارل کیږي.

---

(۱) تدریس بهتر مضمون جغرافیه - نوشته (گل احمد) عضو تدریسی ( T.T.C ) ص (۵۲)

## تیپ ریکاردر ( Tape recorder )

تیپ ریکاردر، هم دسمعي وسایلو څخه یو وسیله ده . د تیپ ریکاردر ښه والی په دې کښې دی چې محترم ښوونکی کولای شی چې یو درسي موضوع انتخاب او په کست کښې ئې ثبت کړی او د ضرورت په وخت کښې د ځان سره صنف ته یوسي او د تیپ ریکاردر له لارې په مخصوص ډول نشر ته وسپاري.

تیپ ریکاردر په تعلیمي او تربیتي مؤسساتو کښې زیات استعمالیږي . د تیپ ریکاردر څخه د شرائطو او امکاناتو په مساعدت کښې د ټولو مضامینو ښوونکی کولای شي په پراخه پیمانه استفاده وکړي. بالخاصه د ژبې د زده کړې لپاره په زړه پورې وسیله کنترل شویده .

د تیپ ریکاردر په وسیله د کنفرانسونو ، سمینارونو ، او نورو عامه مجالسو تقریرونه، لکچر او بیانیې ثبت او د ضرورت په وخت کښې نشر ته سپارل کیږي ، همدارنګه د کست څخه مونږ کولای شو مفاهیم او مقالات د کاغذ په مخ پیاده او په ورځپاڼو او مجلاتو کښې نشر کړو.

ځنی وختونه د لودسپیکر ، تیلیفون ، مخابره او نورو ، وسایلو څخه هم د سمعی وسایلو په توګه کار اخستل کیږي .

# تلویزیون ( T.V )

د درسي ممدو موادو کوم چې د مدرنو تخنیکي وسایلو په جمع کښې راځي[1] یو هم تلویزیون دی . د تلویزیون خوبائي په دې کښې دی چې سمعي او بصري جنبه لري. تلویزیون چې نسبتاً د تاریخي قدامت له نظره سابقه نه لري ، په اکثرو هیوادونو کښې بالخاصه په هغو هیوادونو کښې چې اقتصادي او کلتوري وده ئې ښه وي په تعلیمي او تربیتي چارو کښې تر استفادې لاندې نیول شوی دی .

په اوسنیو شرائطو کښې د تلویزیون څخه لږ او ډېر په پرمختیائي هیوادونو کښې هم کار اخستل کېږي ، البته د تعلیم او تربیې په چوکاټ کښې د تلویزیون څخه استفاده د پرمختیا او انکشاف په حال کښې دی.

په تلویزیون کښې کوم چې په ملي سطحه په کار لویږي د تنظیم شوو پروګرامونو مطابق اکثراً اجتماعي ، سیاسي ، اقتصادي ، ثقافتي ، تعلیمي او تربیتي مسائل او همدارنګه ادبي او هنري پروګرامونه نشرته سپارل کېږي. مګر موږ د ښوونې او روزنې په چوکاټ کښې د تلویزیون هغه پروګرامونو ته زیاته توجه لرو کوم چې اصلاحي ، تعلیمي او تربیتي اړخ و لري .

د تعلیمي او تربیتي پروګرامونو نشر د تلویزیون له لارې کوم چې ښوونکو او شاګردانو پورې اړه لري د ښوونې او روزنې په سکتور کښې د پوره اهمیت او ارزښت څخه برخورداروي ، داځکه چې کوم تعلیمي او

---

(۱) تدریس بخش مضمون جغرافیه نوشته (ګل احمد ) عضو ( T.T.C ) - ۳ ( ۵۳ )

څوك زده کړه کوي؟

درسي موضوع، محتوا او مواد څه دي؟

دکومو میتودونو او وسائلو په کومك سره باید تدریس وشي؟ ..... ؟

د پورتنیو موضوعاتو څخه علاوه څنې لاندینیو موادو ته هم باید توجه وشي،کوم چې د ښوونکو لپاره دا اهمیت ورې دی.

(۱)- درسي عناوین او مفردات :- د مضمون په محتوا او متنونو کښې باید عناوین او مفردات د تعلیمي نصاب په تدوین او ترتیب کښې داسې عیارشي چې دشاگرد عمر او صنفي موقف سره پوره پوره توافق ولري. داکار په حقیقت کښې ښوونکي اوشاگرد سره یو نوع کومك دی.[۱]

ښوونکی دخپل مضمون څخه علاوه باید دشاگرد د ذهني او جسمي ودې او په مجموع کښې محیطي او رواني خصوصیاتو او د ودې د قانونمندی څخه معلومات ولري، داځکه چې د ودې عمومي اصول مطابق د ابتدائي دورو دشاگردانو تدریس د نورو دورو په مقایسه د زیاتو مجسمو او تصویري نمایشاتو او ښودنو تقاضا کوي.

(۲)- د درسي موادو تقدیم :- معمولاً د درسي مفاهیمو او موادو انتقال په مختلفو اشکالو صورت موندلای شي، مگر اصول داده چې د ابتدائي دورو لپاره د مجسمو ممدو موادو په کومك او همدارنگه تصویرونو، چارتونو، گراف او نورو په مرسته درسي موادتقدیم شي، د لوړو صنفونو لپاره کوم چې د شاگردانو تجریدی تفکر وده کړې وي. د قیاس، تشریح، لکچر او نورو ذهني روشونو څخه هم کاراخستلای شو، مگر په ټولو حالاتو کښې بیان او بیاني قوه مؤثره او په زړه پورې اهمیت لري.

---

(۱) روانشناسی تربیتی - برای صنف دوم ماستری - نشرات انیستیوت پیداگوژی کابل - سال (۱۳۶۴) هـ ش ص (۴۶ - ۴۸).

# بِسْمِهٖ تَعَالٰی

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ وَالصَّلٰوةُ عَلٰی رَسُوْلِهٖ مُحَمَّدٍ وَّاٰلِهٖ وَاَصْحَابِهٖ اَجْمَعِیْنَ.

## مقدمه

زده کړه د یو استمراري امر په توګه د انساني ژوند اساسي او لازمي جزء ګڼل شوی دی داځکه چه د ټولنیز ژوند وده او انکشاف د ټولنې علمي پانګې او زده کړې سره مستقیمه رابطه لري.

ښوونه او روزنه د ټولنې او ټولنیز ژوند د فرهنګي میراث د ساتنې او وده ورکولو یو متضمن سکتور په حیث د عمل په ډګر کښې د مثبتو اجتماعي تغیراتو غوښتونکی وي، چې داغوښتنې د تعلیم او تربیې د مسؤلینو او منسوبینو د جد وجهد، ایثار او قربانیو سره متناسب اړیکه لري.

زه د ټولنې د یو خدمتګذار شخصیت په صفت د لوی خدای ﷻ ، څخه ممنون او شکرګذار یم چې ماته ئې د ښوونې او روزنې په چوکاټ کښې د خدمت داچانس راکړی دی، چې د راتلونکی نسل د ښه تربیت لپاره د ( تدریس دعمومي میتودونو او درسي ممد مواد او لوازم) ترعنوان لاندی معلومات راټول او ترتیب کړم.

په دې درسي کتاب کښې چې د دوو برخو څخه تشکیل شوی دی مجموعًا یوولس (۱۱) فصله شامل دي. لومړی برخه ئې چې د ( تدریس د عمومي میتودونو ) څخه عبارت دی، شپږ (۶) فصله لري په لومړی فصل کښې ئې عمومیات مثلا تعلیم او تربیه، درس او تدریس، د ښوونکی امادګی تدریس لپاره او په تدریس کښې ځینې مؤثر عوامل ځیړل شوی دی. په دوهم فصل کښې ئې میتود او میتودلوژی او د میتودونو تقسیم بندی ته ځائی ورکړی شوی دی. په دریم فصل کښې شفاهي یا لفظي میتودونه، څلورم فصل کښې دعملي تدریس میتودونه، پنځم فصل کښې د عیني ( بصري ) تدریس میتودونه تحلیل او

په شپږم فصل کښې د میتودونو په تطبیق کښې د پرنسیپ رعایت او دیو پلان شوی درس ساده مثال وړاندې شوی دی.

دکتاب دوهمه برخه چې ( درسي ممد مواد او لوازم ) پکښې څیړل شوی دی داووم فصل څخه شروع او مجموعًا پنځه فصلونه لري، اووم فصل کښې درسي ممد مواد، د درسي ممدو موادو اهمیت په تدریس کښې او د درسي ممدو موادو دسته بندی توضیح شوی دی، اتم فصل کښې د ځینو ساده محیطي درسي ممدو موادو تفصیل، نهم فصل کښې مدرن تخنیکي وسایل، لسم فصل کښې د درسي ممدو موادو ځینې منابع او مراکز او په یوولسم فصل کښې د درسي ممدو موادو د جوړ[illegible] یې د تاثیر له نظره او په آخر کښې د درسي ممد موادو څخه د ښه استفادې په منظور څو ټکونه اشاره شویده، په دې ناچیزه خدمت کښې ځما یوازینۍ ارزو د لوی خدای جل جلاله د رضا حصول دی.

ددې درسي [illegible] ب په ترتیب او تدوین کښې د ( T.T.C ) ټولو درسي غړو د ضرورت په وخت کښې له ما سره همکاري کړې ده، دکتاب د چاپ او تکثیر په هکله د موسسې د پیداگوژیک د ایرکتر محترم احمدی صاحب مرسته او رهنمائي نه هیریدونکي واقعیت دی [illegible] زه د ټولو څخه د زړه له کومې مننه کوم.

د نواقصو او نیمګړتیاوو په صورت کښې د ګرانو لوستونکو د اصلاحي او ترمیمي پیشنهادا تو هیله مند یو.

" په درناوی "

ستاسې ورور محمد عالم د ( T.T.C ) تدریسي غړی.

د جنوری میاشت ( 1994 ) میلادی کال.

خطاط : معلم محمد صادق " زهیر "

# SOLIDARITE AFGHANISTAN BELGIUM

## EDUCATION DEPT.

# T. T. C.










د ښوونکو د مسلکي زده کړې لپاره

# د تدریس عمومي میتودونه
# او
# درسي ممد مواد او لوازم

مرتب :- محمد عالم « سالمی »

کال :- 1999 ع

بسم الله الرحمن الرحیم

د بنوونکو د مسلکي زده کړې لپاره




# د تدریس عمومي میتودونه
# او
# درسي ممد مواد او لوازم




مرتب :- محمد عالم « سالمی »

کال :- ۱۹۹۹ ع

# فهرست


| گڼه | مضامین | مخ |
|---|---|---|
| ۱ | مقدمه | |
| | **لومړی فصل : عمومیات** | |
| ۲ | تعلیم او تربیه. | ۲ |
| ۳ | درس او تدریس. | ۴ |
| ۴ | د ښوونکي اماده گی د تدریس لپاره. | ۶ |
| ۵ | په تدریس کښې ځینې مؤثر عوامل. | ۸ |
| | **دوهم فصل** | |
| ۶ | مېتود او مېتود لوژی. | ۱۲ |
| ۷ | د تدریس د عمومي مېتودونو تقسیمبندی. | ۱۶ |
| | **دریم فصل** | |
| ۸ | شفاهي یا لفظي تدریسي مېتودونه. | ۲۰ |
| | د ځینو مهمو شفاهي تدریسي مېتودونو تفصیل. | |
| ۹ | د قصې مېتود. | ۲۱ |
| ۱۰ | د سوال او جواب مېتود. | ۲۴ |
| ۱۱ | د تفهیم مېتود. | ۲۷ |
| ۱۲ | د قرائت مېتود | ۲۹ |
| ۱۳ | د مذاکرې او مناقشې مېتود. | ۳۰ |
| ۱۴ | د لکچر مېتود. | ۳۲ |

| ګڼه | مضامین | مخ |
|---|---|---|
| | **څلورم فصل** | |
| ۱۵ | د عملي تدريس میتودونه. | ۳۷ |
| | د ځینو عملي تدریسي میتودونو تفصیل. | |
| ۱۶ | مشق او تمرین. | ۳۸ |
| ۱۷ | د تجربې او ازمائښت میتود. | ۴۰ |
| ۱۸ | عملي کارونه. | ۴۲ |
| ۱۹ | د پروژې میتود. | ۴۵ |
| | **پنځم فصل** | |
| ۲۰ | د عیني تدریس میتودونه. | ۵۱ |
| ۲۱ | د مشاهدې میتود. | 〃 |
| ۲۲ | د نمایش میتود. | ۵۴ |
| | **شپږم فصل** | |
| ۲۳ | د میتودونو په تطبیق کښې د پرنسیپ رعایت. | ۵۸ |
| ۲۴ | د یو پلان شوی درس ساده مثال. | ۶۱ |
| | **دوهمه برخه** | |
| | **اووم فصل** | |
| ۲۵ | درسي ممد مواد او لوازم. | ۶۵ |
| ۲۶ | د درسي ممدو موادو اهمیت په تدریس کښې. | ۶۸ |
| ۲۷ | د درسي ممدو موادو دسته بندي. | ۷۱ |

| ګڼه | مضامین | مخ |
|---|---|---|
| | **اتم فصل** | |
| | دځینو ساده محیطي درسي ممدو موادو تفصیل . | |
| ۲۸ | تختي . | ۷۶ |
| ۲۹ | چارتونه . | ۸۱ |
| ۳۰ | مودلونه . | ۸۵ |
| ۳۱ | جیو متري بکس . | ۸۷ |
| ۳۲ | چوت ( ABAcus ) . | 〃 |
| ۳۳ | مجسمه کره . | ۸۸ |
| ۳۴ | نقشې . | ۸۹ |
| ۳۵ | ګرافونه . | ۹۱ |
| ۳۶ | کومیک | 〃 |
| ۳۷ | تصاویر ، کارت ، اصل شی ، پوستر | ۹۲ |
| | **نهم فصل** | |
| | مدرن تخنیکي وسایل . | |
| ۳۸ | پروجکتور . | ۹۵ |
| ۳۹ | سینما توګرافي . | ۹۶ |
| ۴۰ | رادیو . | ۹۷ |
| ۴۱ | تیپ ریکاردر . | ۹۸ |
| ۴۲ | تلویزیون . | ۹۹ |

| مخ | مضامین | گڼه |
|---|---|---|
| | **لسم فصل** | |
| | د درسي ممدو موادو ځینې منابع او مراکز. | |
| ۱۰۳ | مکتب. | ۴۳ |
| ۱۰۴ | عمومي محیط او چاپیریال. | ۴۴ |
| 〃 | کتابخانې. | ۴۵ |
| ۱۰۶ | لابراتوارونه. | ۴۶* |
| | **یوولسم فصل** | |
| ۱۰۹ | د درسي ممدو موادو درجه بندی د تاثیر له نظره. | ۴۷ |
| ۱۱۱ | د درسي ممدو موادو څخه د ښه استفادې په منظور څو ټکو ته توجه. | ۴۸ |
| ۱۱۴ | مأخذ او منابع. | ۴۹ |